# مورچل

## دعظمتونو وارث :
## عاليقدر اميرالمؤمنين رحمه الله

داميرالمؤمنين په حيث دملا اخترمحمد "منصور" حفظه الله ټاکنه يوه تاريخي بريا!!!

نهم کال اوومه، پرلپسې ۸۳ یمه ګڼه، رمضان المبارک، شوال المعظم، ۱۴۳۶هق جولای ۲۰۱۵م

محترم ملا اخترمحمد "منصور" داسلامي امارت دزعيم ، شيخ الحديث مولوي هيبت الله اخندزاده او محترم ملا سراج الدين "حقاني" مرستيالان تعين شول




- سقوط وفروپاشی محتوم اداره کابل
- دبيعت نصاب اوداميرالمؤمنين دوفات خبر پټ ساتل ! !
- عاليقدر اميرالمؤمنين اودنوي زعامت په هکله زمونږ مسؤليت ! !
- عمر ثالث په خړو جونګړو کې !
- دطالبانو سياسي بصيرت، نوی زعامت اومخالفت ! !

"...هغه چې په قندهار کې د خپلې واکمنۍ له مرکز څخه په خپل موټرسايکل د افغانستان د مغرورو غرونو په خوا روان و، په تندي يې له الله پرته بل چاته د سجدې خاپ نه ښکارېده"

مورچل



نهم کال اوومه پرلپسي ۸۳ يمه ، رمضان المبارک او شوال المکرم ۱۴۳٦ هق، جولای ۲۰۱۵ م

علمي، سياسي او جهادي مياشتينۍ خپرونه

د امتياز خاوند

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنگي چارو کميسيون

مسؤل مدير

شکـــور (شفق)

کتـــنپلاوی

حـــسن خېـل | ايـــوب صـــافی
حـــســن زوی | حکمت بغلانی
زبير مـــسافر | حافـظ سعـــيد

تخنيکي چارې

دفرهنگي کميسيون تخنيکي څانګه

مکاتباتي ادرس

لړليك



پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر
E-mail: baakhtaraf@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحیم

# د امیر المؤمنین په حیث

## دملا اختر محمد "منصور" حفظه الله ټاکنه یوه تاریخي بریا

دعزم دپسرلنیو عملیانوپیاوړی تداوم داسلام او خاورې پر غلیمانو دومره دروند تمام شو، چې دهرخومره زغم او حوصلې سربېره یې بیا هم ونکړای شول ،چې داسلامي امارت دمجاهدینو پرورانـدې لـه خپلې ننګـونې تیر،اوددوئ په چغ ویغ په اصطلاح دروغې سیاسي ډیالوګ پایلو تـه انتظار وباسي ،دکنـدوز ،هلمنـد،سرپل ،بغلان،بدخشان،تخار ،فاریاب ،نورستان او نـورو ولایتونوپراخـه سیمې ، دولسـوالیو فتحـه ،دبې شـمیره وسلو او لسګونوشوبلو دغنیمت کولواود یوې ضربتي قـوې دتهاجمي بریـد پـه بڼـه بیرتـه دغلامې اداري دعسکرو او خارجیـانو پرضـد یـې کارونـه ،هغـه هیښـوونکې (عـزم پـایلې) دي ،چـې د مکاردښـمن خـوب یـې تښـتولی اودخپلوشکست خوړلیوعسکرو دمحاربوي مـورال دلوړولـو لپـاره یـې دګلـم جـم ملیشـو خونکـار جنګ سـالار او دغلامې ادارې دارګ مرستیال دې اړویستی، چې دشمال ځینو سیموکې پخپلو بې نتیجـو منډو تـرړو بانـدې د تښتیدلو عسکرو مورال لوړ کړي .

دوینه څښونکیو یرغلګرو خبرلوڅانو، زرخریدو نطاقانواوددوئ دډالرو په بسپنو چـاغو شـویو رسـنیو دیـوې بلې ناکامې حربې په توګه ، تل هڅه وکړه، چې داسلامي امـارت درهـبري شـورى او دهیـواد دنـامتوعلماوو او مشایخو په سلا اود رایو په اتفاق داسلامي امارت دفقید زعیم عالي قدر امیرالمؤمنین رحمـه الله د ځـای ناسـتې په توګه دمدبر شخصیت ملا اختر محمد منصور حفظه الله پرځای او پر وخت ټاکنه دکدر رهـبري دغـړو تـر منځ داختلاف باعث وښیي ، دا متفق علیه قیادت یې دیوڅوجزوي نادریو پـر سر (خـدای ج مکـړه )پـه اخـتلاف چیلنج کړي او په مورچل کې د ناستو مجاهدینو په روحیاتواغیزوښندي ،پداسې حال کې چې په اصطلاح ګـردو مترقي غربي هیوادونوکې چې کله سیاسي واک له یوه نه بل ته انتقالیږي او کوم سیاسي ادلون بدلون راځي، نو نه یوازې داچې سیاسي او نظامي مشران یې یو له بل سره دمخالفت چنې وهي، بلکې دلسګونو پلویانو پـه وژنـو او ژوبلولو ددوئ سیاسي لوبه پای ته ورسیږي ، او دنظرد اختلاف په پایله کې داسې یو حکومت بانـدې سره سلا شي، چې دولسي وګړو په وینو سور وي، دلته چې لله الحمدهیڅ کومه داسې پیښـه نـده ترسـترګو شـوې او دامارت ټول مشران داسلامي شریعت ددې اصل پـه رڼـا کـې چـې { وأمـرُهُم شُـورى بیـنهم }او هـم دمسـلمان

خلیفه دټاکنې د (اهل الحل والعقد دشورى) په بنه له نوي زعیم سره دشریعت دټاکنیز اصل سره سم دبیعت مراسم په سوله ایزه فضاء کې ترسره او دسیاسي او جهادي چارو واک په درست ډول انتقال شو،نوټول مسلمانان باید دڅښتن تعالی شکراداکړي او دا یوه تاریخي شیبه وبولي !

دې حساسو شیبو کې چې ټول شرق او غرب داسلامي امارت دې څو ګوتو شمیر مشرانوته ځیر دي او ددوئ هره خبره ، هر موافق یا مخالف حرکت څاري او هر ساعت همدا موضوع ددوئ دخپرنیزو شبکودسرخط وي، نو شاید معمولي تیروتنه اولږ غفلت به هم مسلمه امت، افغان ولس اوپه تیره دمرحوم امیرالمؤمنین رح په مشرۍ سپین لښکرته (خدای ج مکړه )نه جبرانیدونکې زیان ورواړوي، او دې لاره لږه کوتاهي به هم دقیامت په ورځ دفدایي او استشهادي طالبانواو سرښندونکیو مجاهدینودونیو ځواب ونشي ویلای !

دچارو دکارپوهانو په آندسږکال، ددې هیلې ډیرې ځپاندې وي، چې ګوندې مجاهدین به وکړای شي، چې دکابل دحکومت تر واک لاندې زیاتې سیمې فتحه او له امله به یې دغلامي ادارې مرکزي هسته متزلزه او تر جدي فشار لاندې ونیسي، چې داحدس ترډیره سم ختلی او دفتوحاتو قافلې دادی دهندوکش سر درو ته هم ختلې اود سپین غر او سلیمان غر لمنې په قهرمانو مجاهدینو ډکې دي، ددې حساسې انګیزې په درک سره غلیمانوسږکال پرله پسي دسترو سترو ولسوالیو سقوط په غبرګو سترګو وکوت، او هم یې دا ولیدل، چې ددوئ په ډالرو روزل شوي عسکرې قشلې هره ورځ په درجنو درجنو له امارت سره یوځای کیږي ،او خپلې امریکایي وسلې ورته سپاري، نو ږومبی یې دقدرمن امیرالمؤمنین رح دوفات خبرې راپورته او بیا یې پسې په پلان شوي ډول ،د طالبانو په منځ کې ددرز او نفاق نادرست خبرونه په مزخرف قالب کې ورځایه او رسنیویې پرې شخوند وهل پیل کړل.

خو ترکومه ځایه پورې ،چې داشغالګرو او دکابل دکاواکې ادارې حالت مطالعه کوو،له ورایه راته دامندې ترړې ددوئ وروستۍ ناکامې هڅې اوماتې ارادي ښکاري ،دوئ اوس دسمندر په ساحل ولاړ او یا په سیندکې د ډوب شوي سړي په شان دي ،چې ځګ ته هم دخپل نجات لپاره لاس اچوي ،دوئ په نفسیاتي لحاظ له برمه لویدلې، که څوک دملنډو وهلو په فکر ورته کومه دنجات خبره وکړي ،نو هم پسې ځغلي، او ددښتوسراب هم ورته د جل وهلې غونډې اوبه ښکاري ،خو حقیقت کې دا ددوئ دواک دځنکندن وروستۍ سلګۍ دي او نهیلې نه یو، چې انشاء الله تعالی باداران (امریکایان) به یې هم دویتنام دجنګ غونډې له ډګره په الوتکوکې دشپې مهال وتښتي، کله چې دارګ واکمن له خوابه راپاڅیږي، نو دوئ به واشنګتن ته رسیدلي وي او غلامان به یې ځانته دمجاهدولس احتساب ته پریښې وي !

راځئ دخپل مسؤلیت درفع لپاره داسې پریکړه وکړو،چې ترپایه به داسلامي امارت تر سپین بیرغ لاندې په ذات البیني وحدت پیاوړې تعهد جهاد بدرګه کوو،او چاته به ددې اجازه نه ورکوو،چې زمونږ سپیڅلي جهادي او اسلامي اهداف وګوابښي او مقاصدو ته له رسیدو مو راوګرځوي ،څو مو خاوره له یرغلګرو پاکه او محمدي ص غرا ء شریعت پکې حاکم شي !!

# د اسلامي امارت د نوي امير د ټاکلو په اړه د اسلامي امارت د رهبري شورى اعلاميه

الحمدلله رب العلمين والصلوة والسلام على رسوله محمد و على آله وأصحابه أجمعين و بعد

مسلمانانو ورونو!

لکه څنګه چې خبر یاست دافغانستان د اسلامي امارت مؤسس او زعيم عاليقدر اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمة الله عليه څه موده وړاندې د وریبښې شوې ناروغۍ له امله خپل روح الله تعالى ته وسپاره او له دې دنيا څخه يي رحلت وکړ.

د نوموړي له وفات وروسته د اسلامي امارت رهبري شورا او د هیواد جیدو علماء کرامو اومشائخو د زعامت دټاکلو په چاره لاس پورې کړ، د اسلامي امارت د رهبري شوراغړو، مشائخو او علماء کرامو چې داهل الحل والعقد له شرعي اعتبار څخه برخمن و د يوې غونډې په ترڅ کې يي له اوږدو سلامشورو وروسته د ملامحمد عمر مجاهد نږدې او د اعتماد وړ ملګرى او داسلامي امارت پخوانى مرستيال ملا اخترمحمدمنصور د اسلامي امارت دامير په حيث وټاکه.

ملااختر محمد منصور چې د مرحوم ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله لخوا هم په خپل ژوند کې داعتماد وړ او د درانه مسئوليت د تحمل لپاره وړ کس بلل شوى وو او په کلونو د اسلامي امارت ټولې اجرايوي چارې ورسپارل شوې وې، داسلامي امارت رهبري شورا او علماء کرامو هم نوموړى د راتلونکي لپاره د افغانستان داسلامي امارت د رهبرۍ لپاره مناسب او مستعد شخص وباله او دشرعي امير په حيث يي غوره کړ.

د زعيم ټاکلو په غونډه کې د علماء کرامو، مشائخو او اسلامي امارت د مشرانو لخوا له ملااخترمحمد منصور سره د اميرالمؤمنين په حيث على السمع و الطاعة بيعت ترسره شو او نوموړي هم د شرعي امير په حيث، شريعت ته دالتزام تعهد وکړ.

همدا راز د يادې غونډې په مشوره او تائيد هر يو د اسلامي امارت د محاکمو پخوانى عمومي رئيس شيخ الحديث مولوي هيبت الله اخندزاده اود مشهورجهادي او علمي شخصيت مولوي جلال الدين حقاني حفظه الله زوى داسلامي امارت پيژندل شوى جهادي قوماندان ملا سراج الدين حقاني د اسلامي امارت د مرستيالانو په حيث وټاکل شول .

د اسلامي امارت رهبر ي شورا د اسلامي امارت دغه تعين شوي زعامت ته دالله تعالى له دربار څخه د استقامت،امانت دارۍ او الهي شريعت ته د وفادارۍ خواست کوي، او مسلمان ملت په ځانګړي ډول د اسلامي امارت ټول مجاهدين يي د شرعي امير په حيث اطاعت ته رابولي.

د افغانستان د اسلامي امارت رهبري شورى

۱۴۳۶ هـ ق کال د شوال المکرم ۱۴مه

۱۳۹۴هـ ش کال د اسد ۸ مه

۲۰۱۵ميلادي کال د جولاى ۳۰ مه

(بت شکن)

# عالیقدر امیرالمؤمنین رح

## او د نوي زعامت په هکله زمونږ مسؤلیت!!!

دهیواد د بوږنوونکې او ویرجن حالت او دهیواد د اولس د وسوکالۍ لپاره د افغانستان په افق کې د طالبانو د اسلامي غورځنګ ظهور او ټوپک سالارانو سره د احتساب ګړندی بهیر لا هماغه مهال، د دې او سني پیر یوه معجزه وبلل شوه، چې په (۱۴۱۵هق د محرم الحرام په ۱۵) کال کې د اسلام دخادم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد صیب رحمه الله تعالی په مشرۍ کندهار کې د اسلامي امارت تاسیس او د بنسټ ډبره یې کېښښودل شوه، نوموړې خورا مدبرانه او معقول قیادت هیواد له جغرافیوي تجزیي، پاټک سالارۍ، رقص مرده، فحاشیو، قماربازیو، تنظیمي جګړو څخه خلاص او د هغو عفیفو ناموسونو د ساتنې سپر شو، چې له امله به یې کابل ښار مکرویانو کې زمونږ پاکو خورګانو خپل ځانونه د دریم او څلوروم پوړ نه لاندې ځمکې ته راغوځول، ترڅو د هغه ټوپکوال له بې عزتۍ نه ځان د مرګ کومې ته وسپاري، چې د همدې ناسپیڅلې هدف لپاره پسې ورغلی دی.

شک نشته چې د افغانستان په تاریخ کې قدرمن امیرالمؤمنین رح د زړوتیا، دیانت او د شریعت پالنې د اسې زرین بابونه جوړ او راتلونکې تاریخ کې یې ځانته دومره لوړ ځای پرېښود، چې د ستر احمد شاه بابا، میرویس خان هوتک غوندې به یې مسلمان ولسونه په کارنامو وویاړې، او دځینو کارپوهانو په آند تاریخ لیکونکي به یې دادومره ډېرې کارنامې دخپل حجم، تکثر او افاقیت له امله هسې یوه خیالي افسانه وبولې او دمشر ملا صیب داد دومره ډېرې شاهکارۍ، اتلولۍ او جهادي نبوغ به ورته له حقیقت نه لیرې ښکاره شي، خو واقعیت به همدا وي چې څښتن تعالی دادومره ښیګڼې دهمده په وجود کې نغښتې او دهمده په لاس ترسره کړې وي او تاریخونه به پرې هغه وخت منصفانه فیصله یا

قضاوت وکړي ،چې کله دثور د (۱۳۵۷)مې کودتاه نه راپیل شوی ظالمانه اړو دوړ پای ته ورسیږي او دتاریخ لیکلو بې طرفه کرکیټران دښکیلاکي او مزدورو هغو ځای ونیسي !

داربښتیا وه، چې محترم امیرالمؤمنین رح نه لندن او واشنګټن کې کومه ماسټرۍ یا دکتورا اخستې وه او نه دځینو سیاست پوهانو غوندې یې په پنځو او شپږوژبو خبرې کولې شوې ،نه دځینو سیاستمدارانو غوندې مکار، چالاک او حیله بازمشر و، او نه یې هم دچوکۍ لپاره دومره کمپاینونه ،ستومانۍ اوستونزې پرځان تیرې کړې وې، خوځانته دګستن په کتاب کې یو نړیوال ریکارډجوړ او ځان نړیوال هیرو کړي ،بلکې دده ښایست او زیبایي ،دده ژوند او کلام ساده ګي وه ،دده ولسي محبوبیت دده دینداري ، تقوی او دجهاد په مستقیمه لار نقشه استقامت او نا متزلزل قیادت و ، دا دده هغه ځانګړتیاوې وې، چې نوموړی یې له محلي ولسي قیادته تر نړیوال قیادت پورې بدرګه او نن ورته دنړۍ مسلمانان او جهادي حرکتونه دامیرالمؤمنین خطاب کوي .

ویډیویې کلیپونو کې له ورایه ښکاري، چې کله دالجزایر ،عراق او شام فدایي مجاهدینو به کومه استشهادي حمله کوله ،نو دخپل لومړني پیغام په سر کې به یې، ړومبی پر محترم امیرالمؤمنین رح باندې سلام او بیا به یې په شیخ اسامه رح باندې سلام وو ایه او بیا وروسته به یې قدایي برید ترسره کړ ،همداسې دملاصیب رح له وفات وروسته ډله ایزو رسنیو کې ،صومالیا، دمصر دالازهر پوهنتون ،شام ،عراق ،فلسطین، پاکستان ،کشمیر، او نورې اسلامي نړۍ مسلمانو مجاهدینو غائبانه جنازې ،دنوموړې روح ته دعاګانې ،دده په باب خپل نیک تاثرات او دده دشجاعت په برکت دطالبانو لښکر دخپل سرتاج وباله او خپله همبستګي یې ورسره ښکاره کړه !

دمحترم امیرالمؤمنین رح کارنامې ډیرې دي، خو هغه یې چې ډیرې مشهورې او دنړیوال کفري ښکیلاک زړونه یې پرې چولي شوي یې دبیلګې په ډول را اخلم :

۱-دافغانستان علماء او طالبان چې دروسانو دیرغل پر وخت په اوو ګونو جهادي تنظیمونو کې ویشل شوي وو ، دامیرالمومنین رح په هڅو او برکت دادی نن ټول په یوه صف کې ولاړ دي او دمسلمانانو نړیوال قیادت کوي ،نن نه دې علماوو او طالبانو کې داووګونو ګوندونو تنظیمي روحیه شته او نه ګوندي رقابت، بلکې نن ټول روحانیون

،علماء او طالبان دیر غلګرو په وړندې واحد قوت دی.

۲-بامیانو کې دبودا مجسمې چې ځینې ناخبره خلک ورته فرهنګي میراث، خو له آره (دشرک بتکدې وي)،چې نړیوال به یې زیارت او بودایان به یې عبادت ته راتلل، او ځینو به یې دسیاحت په پلمه ترڅنګ له شرکي افعالو نه علاوه فحاشۍ هم کولي په بشپړه ډول ونړولي او دشرک دا هډه یې چورلټه ختمه کړه ،راته یاد دي ،چې کله یې دا دبودا مجسمې ونړولي او ددې دپاتي کیدو لپاره یې نه دچا پیسي قبولې کړي او نه دا معزز مشر دکوم ښکیلاکي ملک له تهدید نه وویرید ،نو دمګړۍ یې والیانو ته رسمي مکتوبونه ولیږل، چې هر والي دي دبوتانو ماتیدو کې ددومره ځنډ له امله دکفاري په پار څو څوغوایان حلال کړي او غوښې دې یې په مسکینانو وویشي ،دایې ایمان ،توحید او دیانت وو.

۳-دیوه عرب مسلمان مجاهد شیخ اسامه بن لادن رح څخه بشپړه ننګه او دامریکا یي فرعونیت ته غوخ منفي ځواب ،تردي چې په (۲۰۰۱ز)کال کې دامریکا په مشرۍ دنړۍ کفارو ورته اشر وکړ،او-۴۸)کفري هیوادونو په ګډه ددې اتل مجاهد لښکر پسي افغانستان ته راغلل ،چې دادی ددې امیر المؤمنین رح په مشرۍ امریکایان مات او پاتي شونې یې هم دمرګ په ساحل ولاړ دي.

۴-دړومبي ځل لپاره دمعاصر افغانستان په تاریخ کې دهیواد رسمي تاریخونه له شمسي څخه هجري قمري ته واړول شول اودهیواد مسلمان خو له خپل نوي یا اسلامي میراث (هجري تاریخ)نا بلده دولتي مامورین پدې مکلف وګرځول شول، چې نور دې په رسمي مکاتبو او کلیزو کې هجري تاریخ لیکي ،چې دادی ترنن پوري همدا لړۍ فرهنګي کمیسون تعقیبوي ،همداسې له ولسي وګړو هیرشوي دیني اصطلاحات او اسلامي پرمحتوی کلمات راژوندي شول، لکه ،بیعت ، خلافت ،امیر المؤمنین ،اهل الحل والعقد ،په رسمي کچ نامسلمانو عناصرو ته دکفارو کلمه کارول ،دشرعي نظام عملي تصویر ،دافغانستان په تاریخ کې دړومبي ځل لپاره دیوه دیني عالم سیاسي قیادت ترویجول ،اوداسې نور................

۵-دډول ډول شاهي رژیمونو ،کمونستي ،مجاهد نما نظامونو څخه وروسته لومړی ګران هیواد کې شرعي قوانین پلي شول ،حدود تطبیق شول او دتقنیني ،اجرایوي او قضایي قوو په ګډون ټول قوانین او لوایح دشریعت په رڼا کې ورغول

شول ،او په عین وخت کې نړۍ ته د اسلامي شریعت یوه ځلانده بیلګه هم وړاندې شوه .

۶-د چیچین د مجاهدینو په لاس د چیچین فتحه او په یوازې ځان د چیچین د اسلامي حکومت په رسمیت پیژندنه ،هغه تاریخ جوړونکې کارنامه ده، چې د ققفاز د مسلمانانو جهادي روحیات یې لوړ او ترڅنګ یې د ازبکستان ،تاجکستان او د چین د ترکستان په مسلمانانو کې هم د جهادي پاڅون او خپلواکۍ ساه پوه کړه او همدا ملاصیب رح و ،چې د خپل هیواد د ناخوالو سربیره یې د دې فوق الذکر مسلمانو ولسونو لاس نیوی وکړ.

۷-د خراسان بزرګ او خراسان جدید دهواداړانو هڅې یې په بشپړه ډول له خاورو سره خاورې کړې او د ستر احمد شاه بابا رح په لاس د معاصر متحد افغانستان جغرافیه یې له تجزیې او ویش نه وژغوله .

۸-هیواد کې څوارلس کلن جهاد نه وروسته د قومیت ،سمت او ژبې په نامه بل شوي اورونه یې مړه کړل او ټول افغانان، که د شمال وو ،که د جنوب ،د ختیځ وو ،که د لویدیځ، د اسلامي نظام (اسلامي امارت ) تر سیورې لاندې سره راټول او د پردیو په اشارو د بغض او حسد اورونه یې د تل لپاره مړه کړل ...............لنډه دا چې محترم امیرالمؤمنین د خپل ځان یو ښه مثال وو ،او نه یوازې افغانانو ته بلکې د نړۍ مسلمانانو ته یې په خپله مشرۍ کې هغه خدمات انجام کړل چې په رحلت او وفات یې نه یوازې افغانان بلکې د نړۍ ټول مظلوم مسلمانان کونډې ،یتیمان او هغه څوک ژاړې چې تل به یې د خپلو اوښکو دوو چولو لپاره په همدې ځان خوشحالوه چې دا دی د عمر ثالث امیرالمؤمنین په مشرۍ د طالبانو لښکر راوان دی او ډیر ژر به مو د دې صلیبي یرغلګرو څخه خلاص کړي او ........او........او.......

د مشر ملاصیب رح خبرې روانې او په لنډو او کوتاه جملو کې به مخاطب ته ځواب ورکاوه ،د امریکایانو دیرغل د ګواښونو په شیبو کې خبرالانو ته ځواب کې ویل چې ،ما دیوه مسلمان لپاره خپل سلطنت له لاسه ورکړ /ملاصیب ته چا وویل، چې امریکایان وایي موږ له اسمان نه نیم اینچ شی ګورو. نښه رانه نه خطا کیږي. وایي ملاصیب وویل : دا د دوی وعدې دي، مګر زموږ رب ج هم وعدې کړي، ګورو ، چې د چا وعده حقه ده. دوی دې خپل کار وکړي، موږ به خپل کار کوو. /دا نو شاهي نظام نه دی، چې تاسې راشئ، موږ به درنه لاړ شو. دلته مجاهدین دي، منظم قطعات دي، غرونو ته به درنه وخیژي، هسې به ځان

هم خراب کړئ او موږ هم./دوئ (امریکایان) به خپل کار کوي مونږ به خپل کار کوو.....

داخترد ورځي په خطبه کې دکندهار ولس ته وویل چې : زه خپله مشری کې داسې کار ونکړم چې راتلونکو نسلونو ته پیغور شي .........یوه بل تقریرکې علماوو ته وویل چې : ای علماوو غټه دعوی مو کړي ،راشئ ،که نه دقیامت په ورځ به زما لاس او ستاسو ګریبان وي ............ بس هره خبره یې یوه وجیزه زرین باب او دیوې مقالې سر لیک وي رحمه الله تعالی دجعله الله قبره جنة من ریاض الجنة !

**دقدرمن امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رح په باب دنړۍ دځینو پوهانو تاثرات:**

دمصرالازهر نړیوال پوهنتون استاد محمود الثاني پر خپل ټویټرپاڼه لیکلي دي:

چې امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په اوسنۍ نړۍ کې یو بې مثله خپلواک ، پر خپلو خواهشاتو حاکم او داسلامي نړۍ یو دردمند واکمن و ، هغه ستر ګي ډیر مبارکي دي چې دا منوره څیره یې پرې لیدلي ده . الله ج دې رحم پرې وکړي.

**یوه بهرني لیکوال ملاصاحب داسې تعریف کړی:**

(هغه د اسلام په خاطر خپله جوړه پاچاهي قربان کړه او په وروستۍ ورځ چې په قندهار کې د خپلې پاچاهۍ له مرکز څخه په خپل هونډا موټرسایکل د افغانستان د مغرورو غرونو په خوا روان و ,نو په تندي یې له الله پرته بل چاته د سجدې خاپ نه ښکارېده)

**دشام یو عالم او تکړه لیکوال عبدالله محمد المحیسینی:**

ملا عمر وکوچید ! له هغه وروسته چې دیوه مسلمان لپاره یې خپله پاچاهي ځار کړه، داسې کارنامې یې ترشا پریښودلې چې شاید راتلونکي نسلونه وربانديې دخیالي کیسو ګمان وکړي.

هغه په لسان حال سره درسول الله صلی الله علیه وسلم دا حدیث ولوست :مسلمان دمسلمان ورور دی ,نه به یې دښمن ته سپاري او نه به ظلم وربانديې کوي، نو زه هم مسلمان یم خپل مسلمان ورور اسامه کافر ته نه سپارم،پدې اړه په باریکو مسئلو پسې ونه ګرځید , چې دمصلحتونو په باب کې دځان لپاره لار پیدا کړي.

ملا عمر وکوچید ! نو موړی له هغو لږ کسانو څخه وو ,چې زما دزړه دا ارمان وو , چې ترهغو مړ نشم ,چې دهغوی په لیدلو مې سترګې نه وي یخې

شوې، نو ای الله !ته مو له هغوی سره په جنت الفردوس کې یوځای کړه.)

## دالجزیرې مخکښ خبریال علوني :

علوني: لومړنۍ خبره خو دا ده، چې سړی ډېر درونډ او بارعبه مشر و، خپلو همکارانو او کشرانو سره یې تعامل د پام وړ و،.ملا محمد عمر سره د لیدو پر مهال مې فکر وکړ، چې زه د یو رښتیني حاکم په حضور کې یم او سره له دې، چې واکمني یې ډېره ساده او له هر ډول رسمیاتو خالي وه، مګر بیا یې هم په جلسه رعب ډېر زیات و.

## دامیرالمؤمنین رح ملاقات ته دجماعت اسلامي دورغلي پلاوې تاثرات :

مونږ سفر ته ډېر تیاری نیولی و. زیرک او تجربه کار وفد مو برابر کړی و. دوه درې ورځې مو د ملاصیب لیدو ته انتظار وکړ. کله، چې د ملاقات شیبې راورسېدې، زمونږ د پخوا او خولورو ستړو اروا وې والوتې،.

وایي مونږ د نړۍ د رهبرانو د تکلفاتو فکر کړی و، مګر ډېره ساده ودانۍ کې او ډېر ساده لباس کې یو معزز، مرعِب او چوپ انسان سره مخ شوو. وایي زمونږ وفد، چې سخت متاثره و، نو زمونږ پخو نطاقانو او خبرلوڅو هم خپلې خبرې منظمې و نه کړی شوې..

وایي مونږ د نړۍ حسابونه ارزولي وو. په سیاستونو وغږېدو. ستراتیژۍ مو ورمخې ته کړې، د خبرو جریان کې ترخه هم راتله او خواږه هم، مګر د دې موقر انسان تندی نه په خوږه له خپل حالته بدل شو، نه په ترخه ګونځې شو. وایي کله مو چې خبرې پای ته ورسېدې، ډېر لنډ ځواب یې راکړ: ستاسو خبرې پر ځای دي، خو مونږ د غسې فکر نه کوو. زمونږ لار بېله ده.

دپلاوي دتاثراتو په هکله د لیکوال تبصره دا وه، چې څوک دین ته کار کوي، هغه باید د ملاصیب په څېر همغه ډول فکر وکړي، چې دین ته پرې کار کېږي، نه دا، چې زمونږ د تنظیمونو په څېر د دین په نوم، د دین مخه ونیول شي.

## نامتو لیکوال استادمزمل :

استاد مزمل ځوانو لیکوالو ته یو مجلس کې وویل:

چې زه په مجلسونو او ملاقاتونو کې نه ډارېږم، خو ملاصیب ته، چې ورتلم، پښو مې زور نه اخیست او هغه څه مې، چې ویل غوښتل سم مې ونه شو ویلی..

ستاد ښایست ګلونه ډېر دي
ځولۍ مې تنګه زه به کوم یو ټولومه

## داسلامي امارت نوی زعیم

محترم امیرالمؤمنین ملا محمد محمد عمر مجاهد رح لا په ژوند کې داسې یو څوک دخپل مرستیال یا ځای ناستې په صفت ټاکلی و ،چې خورا ډیر باتدبیره ،سنجیده ،په جهادي او علمي روحیه سنبال او قایدانه صلاحیتونه یې په ځانګړي ډول درلودل ،قدرمن (ملا اخترمحمد منصورصیب) هغه څوک دی، چې مرحوم ملاصیب پرې ژوند کې دامارت دسرپرستۍ باور لاره، نو ځکه خو دامارت رهبري شوری او مشایخو عظامو چې د(اهل الحل والعقد) تشکل یا بڼه یې لرله، دا نوموړی داسلامي امارت زعیم وټاکه او بیعتونه یې ورسره وکړل.

رښتیا هم چې درهبري شوری دا پریکړه پرځای او داوسنیو حالاتو په تناظرپه سنجیده ګۍ سره شوي ،اسلامي امارت نن سبا دډیرو مشکلاتو سره لاس وګریبان دی، داخل کې هم د داعشیانو فتنه په زرغونیدو ده او دجګړې مقابل لوری یې یوازې او یوازې طالبان په نښه کړي ،دفتوحاتو لړۍ هم تنده روانه ده، چې له امله یې دځینو هیوادونوسترګې بریښولې او لګیا دي، څو اسلامي امارت ته ستونزې جوړې کړي ،همداسې یې دمذاکراتو خبرو هم مارکیټ تود کړی ،که دنظامي او جهادي جهته دهیواد فتحه شوني ښکاري، خونړیوال یرغلګر چې مجاهدینو یې افغانستان کې برم مات کړی،اودوئ ددې برداشت نلري، چې امارت اسلامي دې دنظامي لارې واک ته ورسیږې، نو ځکه کوښښ کوي ،چې دنورو لارو نه کار واخلي او مجاهدین هدف ته پرینږدي ،داسلام دلواءیا بیرغ دهسکولو په خاطر سوله کول کوم جرم ندی، خو اسلامي امارت دسولې لپاره یو لړداسې معقول شرطونه لري، چې نړیوال ښکیلاکګر یې بیا نه مني .............

نړیواله میډیا او ګمارل شوي ګوډاګیان یې شپه اوورځ پدې کار کوي، چې خلکو ته جوته کړي ،چې (خدای ج مکړه) داسلامي امارت رهبري شوری کې اختلافات پیدا شوي او دمحترم منصور صیب په زعامت دطالبانو اتفاق نشته ،ددې ادعی دزباد لپاره دځینو استخباراتي کړیو له پسپسکې او نیمچه معلوماتو څخه پیدا شوي خبرې دیوه پاخه سند په حیث وړاندې کوي ،پداسې حال کې چې پخپله امریکا او نوره اروپا کې چې کله نوی زعیم ټاکل کیږي ، نو میاشتې میاشتې ورته انتخاباتي کمپاینونه ترسره کیږي ،ډیر خلک پکې ووژل شي او بیا ګټونکی شخص ډیر مشران او کشران دمشر په حیث نه مني، خو ددې سربیره بیا

هم ولسمشر اعلان شي ،امارت کې نه دا سې ټاکنیز کمپاینونه شته ،نه چنې شته او نه پرې حتی یوه مسؤل بل ته ترخه خبره هم نده کړي ،خو غربي میډیا دومره دا خبره پړسولې ،چې اوریدونکی ترې دیوه لوی پیښیدونکې بحران او غمیزې برداشت کوي.

داسې جزوي خبرې هر نظام او هر حکومت کې وي ،لومړی خو به هیڅ داسې کومه خبره نه وي ،که احیناًداسې څه وړه خبره وي هم ،زما په باور به ډیر ژر انشاءالله تعالی حل وفصل شي ،دحضرت پیغمبرمحمد صلی الله علیه وسلم دوفات په شیبوکې چې کله له( سقیفه بني ساعده )څخه دا غږ جګ شو ، چې انصاروو له (حضرت سعد بن عباده رض) سره بیعت وکړاو مهاجرین په( حضرت ابوبکر صدیق رض او حضرت عمر رض ) باندې راغونډ شول ،حضرت علی رض ،حضرت زبیر بن العوام رض ....سره دحضرت فاطمې رض په کور کې ګوښه شول ،نو هماغه وو ،چې حضرت شیخین رض (سقیفه بنی ساعده) ته لاړل او هلته بالاخره دحضرت ابوبکر صدیق رض په خلافت انصار او مهاجرین راضي او بیعتونه یې ورسره پیل شول، بیا هم ځینې صحابه وو لاخپل بیعت له حضرت ابوبکرصدیق رض سره تر څه وخته پورې ځنډولی وو ،چې دڅه وخت په تیریدو سره یې بالاخره بیعت وکړاو ټول سره، لکه دوروڼو غونډې خلافت کې راټول شول.

همدا هیله داسلامي امارت له ټولو مشرانو څخه شته ،چې ډیر نږدې به دې جزوي ستونزې ته دپای ټکی کیږدي او داسلام ددښمنانو زړونه به په خپل وحدت وچوي !

په شرعي لحاظ چې کله (اهل الحل والعقد )له چاسره دامیرپه حیث بیعت وکړي،نوپه نورو یې التزام لازم وي، ځکه بیعت علامه ابن خلدون په قول (العهد بالطاعة لاولی الامر)ته ویل کیږي اودادټولو مسلمانانو ذمه واري وي، چې خپل مسلمان امیر سره بیعت وکړي، چې ددې پرته به( خدای ج مکره )له هغې وعید لاندې راشي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په باب فرمایي ((عن عبد الله بن عمر ، قال : جاء ابن عمر إلى عبد الله بن مطيع ، فلما رآه قال: ألاأحدثك بحديث سمعته من رسول الله صلى الله عليه وسلم، سمعته يقول: «من خلع يده من طاعة لقي الله يوم القيامة ولا حجة له، ومن مات وليس في عنقه بيعة مات ميتة جاهلية»(الابانة الكبرى لابن بطة).

که هرچا بیعت ونه کړ او بی بیعته مړ شو، دده امیر به شیطان وی،. امام غزالی رحمة الله علیه فرمايي: وَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ شَيْخٌ فَالشَّيْطَانَ شَيْخُهُ.ژباړه. امام غزالی رحمة الله علیه فرمايي دچاچی امیر نه وی اودی مړ شو نو شیطان دده امیر دی.

دامارت دمشرتابه لخوادامیر قبلول ځکه لازمي دي چې دوی کی اکثریت دعلماؤ وی اورسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي (لا يجتمع امتی علی الضلالة). زما امت په ګمراهۍ نه راجمع کیږی .نودوی چې کوم نفرټاکي دي کې به لوی خیر وی.

داسلامي امارت نوي امیر دخپلې ټاکنې اودزعامت دبیعت په ړومبۍ خطبه کې دمشرملاصیب رح په تګلاره تعقیبولو او داسلامي نظام تر راتللوپورې په روان جهادي بهیر ټنګارا و تجدید عهد وکړ، محترم منصور صیب په هغه ړومبۍ وینا کې، چې دده بیعت ته عام علماء او مسؤلین ورغلي وو، په ځرګندو ټکیو وویل: چې مونږ به دجهاد له لارې اسلامي نظام راولو، دسولې په نامه خبرې غولوونکې دي او نه دیموکراسي دموضوع حل را ایستلای شي، ((مونږ له شریعت پرته بل مسیر نلرو، دیموکراسی نه پکښې ځایږي) .دانو هغه خطاب و، چې دلویدیځو رسنیو خبرلوڅانواو زرخریو دوژورنالستانو، لیکوالانواونطاقانویې په باب شخوند واهه او غوښتل یې چې، دسولې په نامه دپیل شوي پروسې په پلمه مجاهدین په رواني لحاظ نهیلې کړي او دنویو فتوحاتو او پرمختګونو مخه په همدې تبلیغاتو ونیسي ،خو له نیکه مرغه چې داسلامي امارت نوي زعامت دا ستونزه درک او په وخت یې ورته ځواب ووایه.

ښایې نور دچا سره دنوي داسلامي امارت دنوي زعامت په هکله دبیعت دځنډ کوم موجه دلیل او منطق نوي پاتي، او مشران او کشران ټول پدې مکلف دي، چې خپل بیعتونه له نوي زعامت سره وکړي او په خپل بیعت سره دکفارو ددسیسو مخه ونیسي !!!



موسی فرهاد

# د طالبانو سیاسي بصیرت

# نوی زعامت،او مخالفت

د طالبانو اسلامي غورځنګ له ابتداء نه تراوسه پخپله ۲۲ کلنۍ دوره کې خورا سخت ازموينښتونه وګالل . خو ترټولو شدید امتحان دوه ځله وربانديي راغلی یو داچې د ۲۰۰۱م کال په وروستیو کې د امریکا په مشرۍ صلیبي ائتلاف پر افغانستان یرغل وکړ او اسلامي امارت شاتګ ته اړ شو ، طالبان سره وپاشل شول . د هیواد ، سیمي او نړۍ د ټولو سیاسیونو او کارپوهانو له نظره طالبان نور د هستۍ له صفحې څخه لیري شوي وو ، د بیا راتلو چانس یې په هرصورت ناشونی ؤ .

دویم امتحان دا ځل د امیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد د وفات خبر ؤ چې طالبانو په لومړي ځل واورید ، دلته هم خلګو ګمان کاوه چې نور نو د طالبانو د اسلامي حرکت په نوم بیړۍ په غرقیدو ده ، بیا امکان نلري چې دا کښتۍ څوک له ډوبیدو وژغورلای شي .

حقیقت هم همدا دی ، که د انساني عقل له لیدلوري ، ورته وکتل شي ، دا دواړې د تاریخ داسي حساسي شیبې وي چې د خلکو اټکلونه باید هرو مرو سم ختلي وای ، او د طالب نوم بیا چا اوریدلی نه وای .

داچې طالبان څنګه وتوانیدل ، له لومړي ځل ازمویښته په بریالیتوب سره را ووزي؛ په دې کې تر ټولو ستر رول د امیرالمؤمنین رحمه الله معنوي اثر ؤ ، د هغه سیاسي بصیرت، سپیڅلتیا او رینښتینولي ، له دین او خاورې سره اخلاص ، د حق په لاره کې ثابت قدمي ، د ستونزو په وړاندي متین عزم ، د ایمان جذبه او افغاني غیرت ؤ چې مجاهدین یې له پاشل کیدلو ، ورک کیدلو او تباه کیدلو وژغورل ، د دوهم ځل لپاره یې هغوی په خارق العاده ډول بیا منظم کړل ، جهادی صفونه یې د بنیان مرصوص په شان داسي مضبوط کړل چې د هغوی د قربانیو په مټ یې بالأخره د دین او وطن دښمنانو یرغلګرو ته ، نه هیریدونکی تاریخي شکست ورکړ . خو خپله یې په همدې لاره کې د وطن په غرو رغو کې خپل روح ، خپل خالق ج ته په داسي حال کې وسپاره چې د شهادت ارمان یې د خالدبن ولید رض په څیر قبر ته ورسره یووړ ، ژوند یې ټول د الله په لاره کې په غزا کې تیر شو خو د شهادت هیله یې پوره نشوه . ولي د همغه

ستر مجاهد صحابي اعزاز يې هرو مرو خپل کړ ، د هيواد د آزادۍ د تاريخي اتلانو مل شو . د تاريخ په پاڼه کې يې د غزنوي ، ابدالي او ميرويس خان غوندي خپل باب پرانيست . روح دي يې ښاد جنة الفردوس دي يې مأوی . برکات او فيوضات دي يې پر خلفو او ځای ناستو وي . آمين

دويم ځل هم طالبان له يو سخت مشکل حالت سره مخ شول ، چې ناڅاپه يې د خپل رهبر د وفات خبر واوريد او د هغه له معنوي سرپرستۍ څخه يې د تل لپاره ځان يتيم احساس کړ . نړيوالو شيطاني رسنيو هم له موقع نه په ګټې اخيستو د زهرجنو تبليغاتو لپاره ښه تابيا ونيوله ، د مسلمانانو اذهان يې د لنډ وخت لپاره تسخير هم کړل ، خو بيا هم د طالبانو هغو مشرانو چې د ملامحمدعمرمجاهد له هدف سره مخلصين وو ؛ د ښه فراست او سياسي بصيرت څرګندونه وکړه ، ډېر ژر يې د يوې لويې خلا او ورپسې د لويو لويو فتنو مخه ونيوله ، هغه داچې د نوي زعامت په انتخاب کې يې سستي ونکړه ، د اميرالمؤمنين په ژوند کې د هغه له لوري غوره شوی نائب يې د هغه ځای ناستی وټاکه ، او د عامو مسلمانانو خصوصاً د مجاهدينو د بيعتونو لپاره يې لاره پرانيستله .

له نن نه تقريباً دوې اونۍ وړاندې ، د جولای په ۳۰مه نيټه د طالبانو رهبري شورا د خپل مشر وفات رسماً تائيد کړ ، او يوه ورځ وروسته يې ملا اخترمحمد منصور د خپل نوی زعيم په حيث وټاکه . له دې اعلان سره سم د طالبانو ځينو کسانو له نوي زعامت سره مخالفت څرګند کړ ، له يوې غلي غونډې وروسته يې په غربي رسنيو کې خپل مخالفت او ملاحظات اعلان کړل . دوی استدلال کاوه چې:

- په انتخاب کې له بيړې نه کار اخيستل شوی .

- دويم دا چې د دوی نظر نه دی پوښتل شوی .

- درېيم دا چې د انتخاب پرمهال اکثريت نه ، بلکې اقليت حاضر و .

نو د دوی په وينا ، پکار دا ده چې يوځل بيا يوه سرتاسري غونډه را وبلله شي او له سره نوی زعيم تعين شي .

دا چې د دوی اعتراضات څومره پرځای او وړاندې شوی حل يې څومره ممکن دی ؟ په لنډه توګه به يې يادونه وکړو :

۱ - لومړی ټکی چې دوی وايي په انتخاب کې عجله شوې ، علماء کرام وايي چې بايد له دې نه هم عاجل اقدام شوی وای ، ځکه چې په اسلام کې دا يو ډېر مهم اصل دی چې که يو امير ليرې کيږي او يا وفات کيږي ، نو د بل په انتصاب کې څومره چې ممکنه وي عاجل اقدام دې وشي ځکه چې د مسلمانانو انتظامي او جهادي امورو ته د امير په نه شتون سره زيان رسيږي . همدا وجه وه چې د نبي کريم صلی الله له تدفين او تجهيز وړاندې صحابه کرام د امير په ټاکلو مصروف شول .

دا بيله مسئله ده چې اميرالمؤمنين پخوا وفات شوی او ځای ناستی يې ناوخته ټاکل

کیږي ، ځکه چې دا کار هم د شرعی علماء کرامو د فتوا له مخې شوی . دا جدا بحث ته اړتیا لري . چې اسرار او حکمتونه یې را وسپړل شي .

۲ - دویمه خبره چې وایی د دوی نظر نه دی پوښتل شوی ، زما د مالوماتو له مخې حتی الوسع کوشش شوی چې د رهبري شوری ټول غړي ، او ورسره علماء کرام او نور اهل الرأی خلک راوغوښتل شي . ترډېره حده دا کار شوی ، ولی ځینی اشخاص چې یا په بل ځای کې وو او یا شرایط ورته مساعد نه وو ، پر وخت د رسیدګي امکانات یې کم وو ، هغوی پاتې شوي دي . او هغه ډېر لږ وو .

۳ - درېیم اعتراض چې وایی اکثریت نه ، بلکې اقلیت حاضر و . زه فکر کوم چې خبره بالعکس ده. دا ځکه چې که موږ دواړه لوري په نومونو سره یاد کړو نو واقعاً چې د حاضرو اهل الرأی خلکو شمېر تر سلګونو ور اوړي او د غیرحاضرو وګړو شمېر لسګونو ته هم نه رسیږي په تیره بیا هغه خلک چې د شورا غړیتوب یې درلود او په جهادي چارو کې یې فعال رول درلود ؛ هغوی خو بیخي د ګوتو په شمېر وو .

تر دې بله مهمه خبره دا ده چې که فرضاً بیا هم د دوی اعتراض پر ځای وګڼو چې ګویا د اکثریت رایه پوښتل شوي نه ده ، باید ټول مجاهدین او ولس وپوښتل شي ؛ نو په دې سختو ، ضیقو او بوختو شرایطو کې خو یې د راغونډیدلو بل هیڅ صورت ممکن نه ښکاري ، پرته له دې چې د ریفرینډم یا ټول پوښتني په بڼه له هغوی نه پوښتنه وشي . چې نوی ټاکل شوی زعامت تصدیقوي او که یې ردوي ؟

نو بیا هم دغه کار په ډېر مهارت او صادقانه ډول په آزاد شکل ترسره شو ، د ټولو مجاهدینو نظر وغوښتل شو او هغوی ټولو یو په بل پسی نوی امیر تائید او بیعت یې ورسره وکړ ، د ۳٤ ولایتونو والیانو ،او د هغوی ۳٤ نائبینو ، د ۳٤ ولایتونو د ملکي او نظامي کمیسونونو مسئولینو ، ۳۵۰ ولسوالانو ، د په لسګونونظامي محاذونو قومندانانو او د دسلګونو لویو او وړو دلګی مشرانو اوګڼ شمیر مخورو قومي او جهادي کورنیو ، د پوهنتونونو او مکاتبو د محصلینو شوراګانو ، د دیني مدارسو په زرګونو زده کوونکو او د هغوی استاذانو علماء کرامو ، او نورو عامو ولسي خلکو نوی امیر تائید کړ او بیعت یې ورسره اعلان کړ . چې دا ټول مسئولین او اهل الرأی خلک دي ، هر یو تر شا په سلګونو او لسګونو وګړي پیروان لري ، او دا چا په زور بیعت ته اړ کړي هم نه دي . خو بیا یې هم په خپله خوښه تائید او بیعت کړیدی .

زه فکر کوم چې د اعتراض کوونکو دغه اعتراض ته نور ځای پاتی نه دی ، او دا مسئله له هغه نه چې دوی یې حل کول غواړي ؛ تر هغه هم په ډېر ښه انداز حل شوي ده . که بیا هم خپل اعتراض ته دوام ورکوي ، نو هرو مرو به خلک د دوی پر نیتونو شکمن شي . چې هسې ـ نه د دوی د مخالفت انګیزه خو به قدرت غوښتنه ، یا قومي تربګني او یا هم د پردیو د استخباراتي کړیو غوښتني نه وي ؟! او امید لرم چې اعتراض یې د

اصلاح په نیت وي ، نه د بد نیتي پربنسټ . ځکه چې پر بدنیتي بنا اعتراض بیا حل نلري ، پرته له رسوایی او ناکامي .

بله مهمه خبره دا ده چې د امیرالمؤمنین رحمه الله کورنۍ او د امیرالمؤمنین د ځینو نږدې ملګرو لکه د سیاسي دفتر مشر طیب آغاصیب ، موقف هم تراوسه اعتراضیه بڼه لري او بې طرفي یې غوره کړي ده . زما د مالوماتو پر آساس دغه ټکي ته رهبري شورا د علماء کرامو په مرسته په ښه جدیت سره توجه کړي، ولې چې د امیرالمؤمنین د کورنۍ اعتراض مجاهدینو ته هم د تشویش سبب کیږي ، ځکه چې امیرالمؤمنین ، د هغه زوی او د هغه کورنۍ د ولس او مجاهدینو په زړونو کې ډېر ستر ځای لري ، په ځوریدلو یې ټول مجاهدین ځوریږي او په ناراضه کیدلو یې د مجاهدینو زړونه ماتیږي . دا راز د هغه نږدې ملګري چې د نظام لپاره یې په سختو شرایطو کې قابل تحسین خدمتونه ترسره کړي ؛ د هیریدلو نه دي . نو په همدې آساس زما چې څومره مالومات دي ؛ نوی زعامت او رهبري شوری د دې مسئلې د حل لپاره ګړندی هلې ځلې کوي ترڅو قناعت بخښه شرعي لاره ورته ولټوي او د هغوی رضایت ترلاسه کړي .

## ضروري یادونه :

د پورته لیکنې مطلب هیڅکله دا نه دی چې ګویا نوي زعامت او یا د هغه ټاکونکو مشرانو، نه به هیڅ ډول تیروتنه صادره شوي نه وي ، او نه خپله دوی ځانونه معصوم ګڼي ، ځکه چې الله تعالی فرمایی :

فَلَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمْ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَى:۳۲] {النجم} .

هغوی هم انسانان دي ، اشتباهات به ځیني صادر شوي وي ، کیدای شی ځینی کارونو کې یې ناسمي پریکړي کړي وي . خو دا په دې مانا نه ده چې هغوی به پخپلو کارونو کې تجدید نظر او مشوره نه کوي ، او نورو ته به د داسي مخالفت زمینه سازي کوي چې خدای مکړه د جهادي صف د ټوټه کیدو لامل شي . خو تراوسه چې یې کوم رول لوبولی ، په هغه سره یې واقعاً د ښه سیاسي بصیرت څرګندونه کړي ده . او په ډېر حساس پړاو کې یې د لویې ستونزي مخه نیولې ده . د جهادي صف د یو والي هڅه یې په اخلاص کړي . پکار ده چې موږ او تاسو ټول مسلمانان د هغوی او د نوي زعیم پر نیت او کړنو تر هغو شکمن نشو ، ترڅو مو چې ناسم او غیر شرعي کار ترسترګو شوی نه وي . کنه خدای مکړه د خدای له لوري به د ستر عذاب مستحق شوي یو.

له هغوی (مشرانو او نوي زعیم) نه مي یوځل بیا هیله دا ده چې د نیک مصلحت او د نظام د علیا مصالحو د تحفظ په خاطر له هرډول شرعي او معقول تنازل څخه ځان ونه سپموي ، ترڅو ډېری نارضایتونه په آسانۍ سره حل کړای شي او د دښمنانو هیلي نیمګړي پاتي شي .

و اِلی الله المشتکی وبه المستعان

حاجي شریف/مولوي اغا

# دبیعت نصاب

## او دامیرالمؤمنین دوفات خبر پټ ساتل!

دیوه امیر او مشر دوفات خبر د حکمت او مصلحت په بناء دشریعت په رڼاکې کله ضرور او کله احسن وي ،وګورئ که الله تعالی دحضرت سلیمان علیه السلام دمړینې خبر پټ نوی ساتلی، نو جناتو یا پیریانو دبیت المقدس تعمیرسرته نه وی رسولی ، کله چې تعمیرسرته ورسید،نو سلیمان علیه سلام چې په کومه امسا (عصا) تکیه کړي وه، د هغې بیخ وینو وخوړ،او حضرت سلیمان علیه السلام راو لوید، جناتو وویل ای کاش چې مخکې خبروای ، لدې تکلیف څخه به خلاص وی، تفاسیرو که دا هر څه شته.

محترم ملا اختر محمد منصورصاحب حفظه الله که دمرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله وفات پټ وساته، دحالاتو تقاضا هم داسې ایجابوله او جهادي مصلحت هم داسې و، لکه داشغالګرو دوتلو بهیر، دمنصب طلبو او قومي تعصب پالونکیو لخوا په جهادي لیکو کې نفاق اچول او داسې نور.........

دامیرالمومنین ملامحمدعمر مجاهد رح جهادي صف ته چې دده اودده دنایب اوولی العهدمنصورصاحب اومنظمو ارګانونو اوفداکارانو په قیمتي سعي اوقربانیودفتحې درشل ته قریب شوی وو،شاید همدا یې دراز ساتنې اهمیت وي ، پدې کې دا فلسفه نغښتل شوي اوداسې ا سرار پکې مرموز وو،چې دتیرو جهادي تنظیمونو غوندې (خدای ج مکړه ) دجهاد لیکو کې اختلاف پیدا نشي، ترڅو دجهاد ثمره له ضایع کیدو نه بچ شي او سنجول شوي حکمت به ښایې محترم منصور صیب او دځنګ ملګرې یې همدې ته هڅولي وي.

دښاغلي منصور صیب دا کار به ضرور دشیوخواوعلماوو څخه په استفتاء او مشوره شوی وي ،اودابه داسې یو اجتهاد وي ،چې الله جل جلاله به پکې خیرکثیر اچولی وي ،امید دی چې الله ج دددې صف څخه د مرورو ورونو شرح الصدراوهدایت نصیب کړي ، ترڅو دداعشیانو غوندې ذلیله نشي۔ او انزوا کې پاتي نشي .

ماتــه دمحـــترم منصــور صــاحب ټاکنــه دحضـرت عمـرر فـاروق رض دټـاکنې غونـدې بریښي ، چې دا ابوبکر صدیق رض خپـل ولـی العهد وټاکه، که څه هـم یوتعدادصـحابه کـرام رض وروســته شــول ، خــوالله ج یــې شر ح الصــدروکړه او بیعـت یــې ورسره وکـړ، نــورو ټولواطرافوتــه دبیعــت پیغامونــه ورســیدل ، ډیروخت پورې یوتعداد صـحابه رض چـې پـه جنګ کې مصروف وو، نه داول خلیفه له مرک نه خبروو اونه په خلیفه ثاني خبروو، کله چـې دتبادلي لپاره بل قومندان جنـګ تـه ورغلـی او دوئ خبرشوي ،هیـڅ کوم خلاف یې ندی کړی، چې زه یې ولي نه یم خبرکړی، دصـف وحـدت صحابه وو رض ته لـه هرڅـه نـه ډیـر قیمتـي وو،منصورصاحب سره مکمل واک و،په نیابت کې یې هـم دامـارت چـارې ښـه سـنبالولې او خدمات یـې قابـل تحسـین دي ،دځینـو خلکـو داخـبره چـې ملامحمدعمرمجاهـد رح یـې بـل چاسره رابطې اوتعلـق تـه نـه پریښـوده، کـذب محض اوداميرالمومنين لـه غیـرت سره خـلاف ده، بلکې داميرالمومنين حسن قیادت و،چې پـه منصورصــاحب بانــدې یــې حســن ظــن اواعتمادو،نو ځکه یـې خپـل صـف تـه حسـن قیادت برابرکړی و،داسې لکه نبی علیه السـلام لمانځه ته حضرت ابوبکررض مخکې کړ ،نه علی رض !! علماووهمــدادلیل دحضـــرت ابــوبکر صدیق رض په خلافت باندې نیـولی دی ،کـه

چیرته دمحترم منصور صیب نیابت کې کـوم ډول شرعی نقصان وی، نو بیا ددومـره فتوحـاتو تسلسل نه پیلیده او بـه دومـره لاسـته راوړنـې وی ،قاعده داده چې نایب تـه دمنـوب حکـم وي ،نـو بیـا د (اهـل الحـل والعقـد) بیعـت بغیردچادتیـت وپـرک کیـدو نـه وکـړ اواکـثر مخلص مجاهدین وربانديې راضي دي، نو دغه د رضابیعت دی )(فقهه اسلامیه)

دامام اواميرپه تعیین او ټاکنه کې داهـل شوری دټولو غړواتفاق اوحضورشرط ندی .

داحتمي نده ،چې دیوه زعیم پـه ټاکنـه او انتخاب کې دې داهل الحل والعقد دشوری ټول غړي دده په زعامـت خـوښ وي ،کـه ګونـدې ټول پرې راضي نـه وي، نـو بیـا بـه ددې زعـیم زعامت نه صحیـح کیـږي ،ښه خـبره همداسـې ده، چې ټول پرې راضي شي ،خو کـه ټـول پـرې راضي نه شي، نو بیا یې هم امامت صحیـح دی او کوم ډول شرعي قباحت نه لـري، لکـه همـدا مسـله (دشرح عقایـد پـه شرح النـبراس) کـې داسې لیکل شوي :

لا حاجة فی البیعـة الی الا جمـاع بـل یکـفی بیعة بعض اهل الحل والعقد وذلـک لان عمرعقـد الاما مة لابی بکررضی الله تعالی عنهما وکذ لـک عبدالرحمن بن عوف لعثمان رضی الله تعالی عنهما ؛ نبراس حاشیه شرح العقا ئد ص ۵۹۳).

ژباړه: په بیعت کې ددې حاجت او ضرورت نشته چې داهل الحل والعقد دشورى ټول غړي دې پکې نوې امیر ته بیعت ورکړي، بلکې د اهل الحل والعقد دشورى دځینو اعضاوو بیعت هم بسنه او کفایت کوي، لکه حضرت عمررضی الله تعالى عنه چې دحضرت ابو بکررضى الله تعالى عنه دتعیین داما مت لپاره داسې وکړل اوهم داسې عبدالرحمن بن عوف دعثمان رضى الله تعالى عنه داما مت لپاره وکړل.

لاَ يُشْتَرَطُ اتِّفَاقُ أَهْلِ الْحَلِ وَالْعَقْدِ مِنْ سَائِرِ الْبِلاَدِ، لِتَعَذُّرِ ذَلِكَ وَمَا فِيهِ مِنَ الْمَشَقَّةِ، الموسوعة الفقهية الكويتية ج ٦) ص ٢٢١ )و الفتاوى الفقهية الكبرى ج ١٠) ص ٨٣ ( ژباړه: د اهل الحل والعقددشورى دټولو غړو اتفاق شرط ندى، له ټولو ښارو اوسیمو دامتعذره اوسخته ده چې ټوله شورى دې سره جمع شي په دې کې مشقت اوتکلیف دى!

اوپه (السياسة الشرعية ) لیکي چې: وإن أقام بعض أهل الحل والعقد إمامًا سقط وجوب نصب الإمام عن الباقين, وصار من أقاموه إمامًا, ويلزمهم إظهار ذلك بالمكاتبة والمراسلة؛ لئلا يتشاغل غيرهم بإمام غيره وقد وقعت الكفاية, ولئلا يؤدي ذلك إلى الفتنة, فعدم مبايعة سائر أفراد الأمة لا يؤثر في انعقاد الإمام؛ لأن العقد يتم بمجرد مبايعة أهل الحل والعقد, ولا يكون العقد صحيحًا إذا لم يبايع الإمام أهل الحل والعقد السياسة الشرعية ج ١)ص ٥٢٨ (

که چیرى د اهل الحل والعقددشورى ځینوغړو امام وټاکه نو له نوروڅخه دامام نصب سا قط شو، اوهغه څوک شرعي امام شو،چې دې نورو ټاکلی ، او پردوئ لازم دي ، چې خلک د مرا سلاتو او لیکونوپه ذریعه دامام دټاکنې څخه خبر کړي دا ددې لپاره چې دا نور له بیعته پاتي خلک دبل امام په ټاکنه ځانونه مصروف نکړي ،داپداسې حال کې ده ،چې دامام خلاډکه شوي ده ،او بل ددې لپاره چې دکومې فتنې سبب نشي ،نو دځینو افرادو له بیعت څخه وروسته کیدل، دامام انعقاد نه اغیزمن کوي ، داځکه چې مجرد مبایعت داهل الحل والعقد عقد بشپړوي اوکه چیرته ورسره اهل الحل والعقدغړي بیعت ونکړي، نو دا عقد بیا نه صحیح کیږي .

قَالَ الْإِمَامُ أَبُو الْمَعَالِي: مَنِ انْعَقَدَتْ لَهُ الْإِمَامَةُ بِعَقْدٍ وَاحِدٍ فَقَدْ لَزِمَتْ، وَلَا يَجُوزُ خَلْعُهُ مِنْ غَيْرِ حَدَثٍ وَتَغَيُّرِ أَمْرٍ، قَالَ: وَهَذَا مُجْمَعٌ عَلَيْهِ. الجامع لأحكام القرآن = تفسير القرطبي ج ١) ص ٢٦٩(امام ابو المعالي ویلي دي ،که داهل الحل والعقد دشورى یوه غړي هم دامام په حیث له چا سره بیعت وکړ، نودده امامت لازم شواومخالفت یې دتغیر دامر نه په غیر ندى روا،او همدې باندې اجماع منعقد ده.

# حرکتي تيندک

محمد جمال خطیب

د اسلامي نړۍ مشهور داعي استاد فتحي يَکَن په اسلامي حرکتونو کې د هغه خلکو په اړه يوه اصطلاح رواج کړې چې نيمه لار کې تعهد ماتوي، لار بدلوي، په کور کيني يا هم د ځينو دلايلو پر بنسټ شقاق وانشعاب ته لمن وهي. دی ورته "المتساقطون على الطريق" وايي. معنی په لار پرېوتي خلک.

دا اصطلاح ښاغلي يَکَن صاحب ته منسوبه ده. له ده مخکې چا دا اصطلاح نه ده کارولې. دی په مذکوره عنوان يو کتاب هم لري، چې د همدې خلکو په اړه يې تفصيلي بحث کړی.

نوموړی عالِم چې د ليکنې په تفصيل کې د اجتماع ساتلو تلقين کوي، ځای ځای وايي هغه خلک چې لار بدلوي، انشعاب پيدا کوي، دښمن ته دلايل په ګوتو ورکوي، بايد د خپل جماعت اصلاح ته همداسې بدې ووهي. دا رښتيا هم ده. تر هغې چې دله مفسده شوې نه وي، فساد يې قابلِ اصلاح دی. که خبره افساد ته ورسيده، نو بيا يې په اړه الله جل جلاله فرمايي : إِنَّ اللَّهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ الْمُفْسِدِينَ.

دلته يوه خبره زه خپله يادوم، چې زموږ ليکوالو د استاد يَکَن اصلاح "تساقط" په "پرېوتو" ژباړلې، دا د دې لفظ خپله معنی ده. زه وايم ضرور نه ده ،چې دا لفظ کټ مټ وژباړل شي، ځکه دا اصطلاح ده، متني لفظ نه دی چې ان مفهومي معنی يې خطا خيژي.

په همدې علت ما په "تيندک" ژباړلی. ښاغلی يَکَن صاحب چې د تساقط ډولونه روښانوي، ښکاري چې ځينې وخت دا تحريکي انسان په ځان نه پوهيږي او مخ په ښکته ځي او په "تيندک" کې له "پرېوتو" دا معاني ښه جوتيږي. په هر صورت دا يو نظر دی، اختلاف ورسره کېدای شي.

## د حرکتي تيندک عوامل او ډولونه

ځينې صورتونه دي چې د حرکتي تيندک عوامل او ډولونه روښانوي. مثلا لومړۍ خبره دا ده چې ځينې وخت د تيندک سبب داخلي وي، ځينې وخت خارجي. داخلي دا معنی چې په حرکت کې دننه چا سره يو ډول اختلاف پيدا شي. يا په دلايلو بناء وي يا حقد او حسد پسې اخيستی وي. کله داسې هم وشي چې د فهم او برداشت له کبله څه تېروتنه وشي. کله بيا داسې هم وشي چې واقعا يوه ستونزه او شرعي اعتراض وي، خو دا اعتراض سره له ضخامت او عمقه د لارې د بدلولو يا پرېښوولو سبب کېدای نه شي.

کله د حرکت دننه د لومړيتوبونو او مصالحو په سر څه ستونزه پېښيږي او دا د دې علت شي چې يو حرکتي انسان تيندک وخوري او مخ په ځوړ شي. په هر صورت ټوله هغه عوامل چې

شرعا د بیعت د ماتولو قوت نه لري او انسان پې پر بنسټ لار بدلوي "تساقط" یا "حرکتي تینک" بلل کیږي.

خارجي سبب دا معنی چې یو څوک د بل حرکت لور ته د مادي اسبابو له مخې ورشي. یا د حریف حرکت د نیوکو او ګوتڅنډنو تاثیر پرې وشي، لار بدله کړي یا په کور کېني. په خارجي اسبابو کې د خپل کور فشار هم شامل دی. مثلا پلار، مشر ورور، کاکا، ماما نه غواړي یو انسان په دغه ډول متحرک واوسي. کله چې دی دې کورني فشار ته غاړه کېدي، د تینډکمارانو ډلې ته شاملیږي.

همدا ډول هغه حکومتي فشار چې د یوه حرکت د مخنیوي لپاره یې کاروي، همدې کټګورۍ کې شامل دی. یو متعهد انسان چې د استخباراتو او امنیتي کړیو له وېرې یا د هغوی د تطمیع له کبله لار بدله کړي یا په کور کیني، همدا حکم پرې صادقیږي.

په خارجي اسبابو کې دا هم شامل دي چې حریف حرکت یو متعهد انسان په مرګ و درد ګواښي او په همدې علت لار او کار پرېږدي، تینډک شمېرل کیږي.

دلته مهمه خبره دا ده چې یو متعهد انسان په کومو دلایلو یو حرکت انتخابوي. که چېرته یو حرکت په شرعي دلایلو بناء وي او په خپله ساحه نعم البدل نه لري، دغسې حرکت پرېښوول، ماتول او کمزوری کول تینډک ګڼل کیږي.

کله داسې وي چې یو انسان یو حرکت سره تعهد لري، خو دا حرکت په بشپړه توګه یا د بل حرکت په تناسب هغومره شرعي نه وي، ګویا د ده د انتخاب کړي حرکت ښه امثل بدیل پیدا کیږي، دغه صورت کې که دا انسان د شرعي دلایلو پر بنسټ امثل حرکت ته ځي، دا تینډک نه دی بلکې د غوره او لا هسک لور ته پرواز دی.

د غوره او امثل حرکت معنی دا نه ده چې یو انسان ځان په متاکو دلایلو قانع کړي او خپل تینډک ته د غوره حرکت د انتخاب نوم ورکوي بلکې معنی دا ده چې د ده انتخاب په شرعي دلایلو بناء وي او هر سلیم العقل انسان ته د منلو وړ وي.

موږ هم له بده مرغه داسې تینډکماران ولیدل چې د یوې دعوی پر بنسټ یې خپل حرکت نیمګړی ښکاره کړ، حال دا چې خپله د یوه خام حرکت لور ته ورغلل او بېرته په صفر نقطه ودرېدل. یو دا خبره ده چې څوک د یوې دعوی لپاره د کار تظاهر کوي. یوه دا ده چې دغه دعوی په واقع کې ځای لري که نه؟

هغه اسباب، امکانات او مقدماتي زمینه سازي لټول شوې چې د یو کار لپاره ضرور وي او هغه هم دومره ثقیل کار چې د نړۍ هر زورور یې په خپلو ټولو امکاناتو مخه نیسي؟ او که نه دا پرمختګ یوازې په دې راځي چې دا حرکت پرېږده او هغه بل انتخاب کړه؟

له بده مرغه چې دغه خلک د حرکتي تینډک ښکار شول او په لوی لاس یې د متعهدو ملګرو په ذهن کې تشویش ته لار ورکړه.

# امیرالمؤمنین...

# د عظمتونو وارث!

د امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد په اړه ډېرې او په زړه پورې خبرې کېدای شي. هغه د داسې تاریخي پړاو یو قهرمان وخوت چې خلک سا وتیګا د یوې پنا په لټه زغاستي وو. هغه داسلامي امت او په ځانګړي ډول افغانستان دتاریخ نه بندېدونکی، نه بدلېدونکی او ویړنده باب شو.

لیکنې شروع دي، داسې ناویلي شیان رابرسېره کیږي چې حیران به دې کړي. هر لیکوال کوښښ کوي داسې څه ولیکي چې نورو نه وي لیکلي. که لیکلي یې هم وي کوښښ کوي چې اسلوب وربدل کړي. دا مهال زما ذهن ته د امیرالمؤمنین په اړه دوه خبرې حاضرې دي او ما ته د هغه له صفاتو دا دوه هغه ډېر مهم ښکاري.

### د جهاد د ثمرې ساتونکی

په دې کې د هیچا هم اختلاف نه شته چې افغانانو ته بلکې ټولو مسلمانانو ته د افغانانو په اړه د جهاد د نتایجو ګټل مهم دي. موږ ولیدل کله چې د روسانو له ماتې وروسته ځینې رهبران خپلو کې سره ونښتل د نړۍ لوی لوی علماء، دعات او خیرخواهان د دوی د روغې جوړې لپاره لاس په کار شول. ځینې علماء او مخور شخصیتونه په دې سوله کې سپک کړای شول، مګر هغوی هیڅ باک ونه ګاڼه او خپل کار یې مخکې یوړ. د دوی دا کار همدا معنی لري چې مسلمانانو ته زموږ د یووالي او جهاد خبره تر هر څه مهمه ده.

له بده مرغه چې زموږ سرکښانو د جهاد اهداف په نظر کې ونه ساتل او په هغه لار لاړل چې دښمن انتخاب کړې وه. د روسانو د وتلو پر مهال یو عجیب اتحاد رامنځته شو. نړۍ که څومره هم سره مخالفه شي بیا هم دومره په کې د روغې ځای پاتې وي چې د مسلمانانو پر ضد په کې یو ځای لاس په کار شي.

موږ ته معلومه ده او نړۍ کې هم مشهوره ده چې امریکا د روسانو پر ضد د افغانانو څنګ

ته ودرېده او له هيڅ مرستې او ملاتړ يې دريغ ونه کړ. کله چې خبره اسلامي نظام ته راغله او مجاهدين خپلو کې په نظام غړېدل د کفر دښمني خپلو کې په يو ناڅاپي اتحاد بدله شوه. دا دواړه جهته په دې سره سلا شول چې افغانستان کې به د اسلامي نظام د قيام مخه نيسي.

کله چې روسان مات شول غربي مفکرينو وويل : مهالنی دښمن مات او ازلي دښمن سوبمن شو. د روس او امريکا مخالفت وخت پورې تړلی دی او اسلام سره د دوی مخالفت ازلي او تر پايه دی. اسلامي نظام نه روسان او امريکا يو ډول ځان ساتي ځکه خو يې اوږه په اوږه د اسلامي نظام مخالفت ته راودانګل.

د دې دواړو لويو جهتونو خواري وه چې افغانستان کې جهادي ډلې په داسې جګړې کې ښکېل شوې چې د جهاد عظمت يې د خلکو سترګو کې ووړ کړ. جهاد ته کمونستانو او نيشنلستانو د فساد خطاب وکړ. عام ذهنيت هم له دوی متاثر شو. اسلامي حلقه د يوه ناکامې ډلې په نوم وپېژندل شوه. د خلکو ذهنيت دا و چې نړۍ کې ټولې فلسفي او ګروهي ماتې شوې وار د اسلام دی او نړۍ به ژغوري.

کله چې تنظيمونه خپلو کې ښکېل شول هغه د اسلامي نظام وار يې داسې تېراوه چې خلکو په هر نظام شکر وويست. کله چې د جهاد دعظمت وارث توره پورته کړه او ميدان ته راووت..د هيلو غوټۍ ګُل شوې..ارمانونو غځونې وکړې..هغه روحونو ارزښت پيدا کړ چې د اسلام د حاکميت په هدف له نړۍ کوچېدلي وو..هغو سرونو قيمت وګاټه چې د شريعت د نفاذ په کوښښ ورغړېدل..د هغو هډونو قدرداني وشوه چې د محمدي رڼا د خپرېدو په خاطر ويلې شوي وو.

اسلامي نظام يې حاکم کړ. نړۍ ته يې وښودله چې موږ د دې نظام لپاره سر ورکړی و او نړۍ ته يې وښودله چې موږ څه غواړو هغه کوو زموږ مخه دې څوک نه نيسي-ځکه چې څوک يې نه شي نيولای.

هو...اميرالمؤمنين د جهاد د عظمت وارث و....

## د افغاني تاريخ تسلسل

د داخلي جګړو له کبله افغانان داسې پړاو ته رسېدلي ول چې په تاريخي لحاظ ترې د يوې سوبې طمع هم نه شوه کېدای. دښمن داسې فکر وکړ چې دا خلک ګوندې پراګنده شول. دا ګومان ډېر بې ځايه هم نه و ځکه چې افغانانو هغه وخت تاريخ ته څه ورکړي چې کله يې لاسونه سره ورکړي وي. اتفاق واتحاد چې نه وي بيا خو تاريخ د زرداد خپلو کيسې ليکي..هغه

داستانونه خوندي کوي چې دکمزوري زړه څښتن يې لوستلای هم نه شي.

تر ټولو ستر ګواښ چې ټولې نړۍ پرې تبصره کوله او دښمنه نړۍ ورته لا سترګې په لار وه هغه د افغانستان د تجزيې خبره وه. څه خلک خو لا دننه په کور هم دې ته خوشاله ول چې په واړه مساحت کې خو د ده په څېر سړی هم وزير کېدای شي، مګر داسې سړي توره په لاس ميدان ته راودانګل چې هر شوم هدف يې پوچ کړ..هره بده حيله يې په شا وټمبوله او هر بد نظر يې له بېخه وکاږه.

سړي د ابدالي جغرافيې داسې ساتنه وکړه چې تجزيه ماران يې تر کولاب واستنبول و ماسکو ورسول. د افغانستان د نيمولو هره دسيسه يې له منځه يوړه او قومي تړون يې د عقيدې په داسې تار سره وتاړه چې نه شلېدونکی او سپنېدونکی دی.

که دا خبره تر پرونه پټه وه نو دا نن وګورئ چې شمال کې مجاهدين د اسلامي امارت په اطاعت کې په کومه رشته سره تړلي؟ تر پرونه چې د تجزيې په دليل د اشغال د دوام خبرې کېدلې څنګه به يې تکراروي چې د اسلامي امارت مجاهدين د هېواد په لر وبر کې سره په يوه مزي او موحد اطاعت تړلي دي.

هو..اميرالمؤمنين د افغاني تاريخ د عظمت وارث و. نه يې نړېدو ته پرېښود او نه يې خرابېدو ته چې ځينو بې ارزښته خلکو د دې مسلمان ملت د اسلامي وروروليۍ احساس ځپل پيل کړی و. اميرالمؤمنين په کور دننه هم دا احساس ژوندی وساته او ټولې ته نړۍ ته يې هم د دې عالي احساس مثال وړاندې کړ.

هو..اميرالمؤمنين د افغاني تاريخ د عظمت وارث و...

# عمر ثالث په خړو جونګړو کې!

امین وردګ

د هغه ماشوم د ژوند لنډ حالونه درته لیکم :
چې په ۱۳۳۹ هجری لمریز کال کې یې د کندهار ولایت د خاکریز ولسوالۍ د چاه همت په کلی کې دې غمجنې دنیاګۍ ته سترګې لوخې کړې.

وړوکی ((عمر)) لا د ماشومتوب تانده دوره نه وه تمامه کړې ( د پنځو کالونو په عمر کې ؤ ) چې د خواژه پلار د هجران ځاپېره یې پرمخ و خوړله ، او د یتیمانو د کلی مېلمه شو ؛ دا مهال یې د خاکرېز خړو کورنو په وړوکی زړه حملې کولې ، او د پلار یادونو به ځورولو ، نو له دې کلی هم کډه شو ، او د ډنډ ولسوالۍ ته یې پناه یوړه ، خو هلته یې هم د رزق انتظام تمام شوی ؤ ؛ بیا یې له خپل محترم کاکا (مولوی جمعه ) سره د ارزګان په ولایت کې خپل پردېس ژوند ته دوام ورکړ ، او له هغه نه یې دینی زده کړې پیل کړې ؛ کله چې نوموړی د ۱۸ کلونو عمر پوره کولو : نو دینی درسونه یې هم د حدیثو دورو ته نېږدې کړل ، خو دامهال په ګران وطن افغانستان باندې کمونستي اجیرانو ( د شوری اتحاد په ملاتړ) نظامی یرغل وکړ ، او افغان اسلامپالو مجاهدینو یې د غاښ ماتولو د پاره ملاوې و تړلې ، نو پدې سربښندوکو زلمیو کې (عمر ابن مولوی غلام نبی ، ابن مولوی محمدرسول ، ابن مولوی بازمحمد ) هم برخه واخیستله ، خو له څه وخت مبارزې وروسته له هغه ځایه هم د خپل پلارنی ټاټوبی کندهار په لوری روان شو ، د پنجوایي ، میوند ، او ژېړۍ په ولسوالیو کې یې د سرو لښکرو ، او د هغوی د افغانی مزدورانو په وړاندې (د حرکت انقلاب اسلامی جهادی تنظم تر قیادت لاندې) مخامخ پر دشمن اسدی حملې کولې ، او همدلته د یوه وتلی زړور قومندان په توګه و پېژندل شو ؛ نوموړی شخصیت د شوروی اشغالګرو پر ضد چګړو کې څلور ځله ټپی شوی ، چې په آخری ځل یې خپله ښۍ سترګه هم د الله په لاره کې نثار کړه.

نو کله چې مجاهدین واک ته ورسیدل ، او کمونیستی نظام ړنګ شو ؛ نو (محمد عمر) بېرته خپلې دینی زده کړې ته د سنګ حصار په سیمه

کې دوام ورکړ ؛ اما کله یې چې خپلمنځی جګړې لیدلې ، او پدې بې هدفه جګړو کې یې د بیت المال د شتمنیو چور ، او چپاول کتلو ، د وحشت اوج ته یې په سترګو کتل ؛ نو د صبر ، او زغم کاسه یې ډکه شوه ، د زده کړې پر ځای یې د وحشت پر مقابل کې د حق پلوې مبارزه ته ترجح ورکړه ، او د دینی علماؤ له فتوا ، او ملاتړ سره سم یې د خپلسرو یاغی قومندانانو پر ضد یو ځلې بیا وسلې ته لاس کړ ، او له کندهار ولایت نه یې جګړه پیل کړه ؛ دلته د ده خوځښت پر حق ، او د اسلامی تحریک په نوم و نومول شو ، ۱۵۰۰ دینی علماؤ د یوې شورا په ترڅ کې ده ته د امیرالمؤمنین لقب ورکړ.

د ده شعار د اسلامی قانون حاکمیت ؤ ، د جګړې په اصولو کې یې جګړه مارو ته عمومی عفوه ، او د توبې توصیه کوله ؛ د جګړې پر مهال به یې د مخالف لوری له محاصره شوو جګړه مارانو څخه وسلې اخیستلې ، او هغوی به یې ژوندی خوشی کول ، آن تر دې چې د ۱۳۷۵ ه ل کال د میزان پر شپږمه یې د افغانستان پلازمېنه کابل تر خپلې سلطې لاندې راووست ؛ خو دا هغه کابل نه وو چې له جهادی ډلو مخکې لیدل کېده ؛ بلکې د کنډوالو یوه ټولګه وه.

ټول افغانستان (پرته له ځینو محدودو سیمو) د اسلامی امارت تر شرعی قوانینو لاندې راغی ؛ خو متأسفانه چې د ۱۵ /۱۳۷۹/٦ نېټه دا ((اسلامی نظام)) د ناټو د غړو هېوادونه ( چې شمېره یې ((٤٤)) مملکتونو ته رسیږی (، ځینو نورو غرب پالو غوړه مالو مملکتونو ، او د افغان (غرب پلوو) ډلګیو له خوا را چپه شو ؛ پدې جګړو کې د اسلامی امارت پر ضد بعضې ممنوعه کېمیایي وسلې و کارول شوې ، ځینې مشران یې د افغانستان ، او پاکستان د پلورل شوو جاوسوسانو له لاسه د غربي متجاوزینو په لاس د ګونتانامو وحشی زندان ته یوړل شول ، او ځینې نور بیا په همدې خاوره کې د بګرام هغه زندان ته ولوېدل :چې واک یې پرته له خارجیانو د بل چا سره نه وو ، او افغان چارواکو هلته د ورتګ اجازه نه لرله.

لنډه دا چې د دوو کلونو په شاوخوا کې (خاکریزی اتل) بیا خپل مخلص ملګری سره راټول کړل ، او د غربی طاغوت په ضد یې غابښ ماتوونکې مجادله له سره پیل کړه ، داسې سبق یې ورکړ چې تر عمره به یې یاد ساتی.

دغه خاکریزی یتیم ماشوم ته الله پاک داسې ځانګړی صفتونه ورکړی وو : چې په ډېرو انسانانو کې نه لیدل کېدل!

۱= په سنګر کې به یې) R.P.G راکټ) په خپله فیر کولو.

۲= ډېر فقیر طبیعته ، خوش خولقه ، او ساده زړی وو.

۳= نهایت متقی ، او زړه سواندی شریف مزاجه وو.

۴= ځانته یې امتیاز ورکول عیب ګڼل.

۵= هرچا ته یې د لیدلو اجازه ورکوله (اما نېژدې ملګرو به یې د ده دا عمل د هغه شخصیت ته د خطرې رسولو لامل ګڼلو) چې په پای کې پدې

سلا شول : تر څو )خاکریزی اتل) لـه خپـل تظـاهر څخه ډډه وکړی ؛ همغـه وو چـې دده پـر نیولـو ، او وژلو بانـدې غربیـانو (۱۰۰۰۰۰۰۰) لـس میلیونـه آمریکایي ډالـره انعـام کېښـودلو ؛ نـو ده هـم جـداً خپل ځان ته توجه و کړه ، او د مکار دښمن نـه یـې خطره احساس کړه ، خو بیا یې هم د خپل وطـن د خـړو جـونګړو پـه مـنځ کـې د الله د قـانون مـادې لوستلې ، او د همغو مادو له مصداق سره سـم یـې خپل مسئولیت ادا کولو ، او د حق سـنګر یـې ګـرم ساتلي ؤ.

٦= تهجد یې خوښ عمل ؤ.

۷= زړې جامې یې اغوسـتلې ، د ده ، او د ده د ملګـرو تـر مـنځ بـه کـوم ځـانګړی امتیـاز نـه تـر سترګو ګېدلو.

۸= خوراک یې عادی ؤ.

۹= سر به یې ډېر وخت پر خاورو اېښودلو ، مګر امر به یې چې وکړ : نو په ٢٤ ساعتونو کې به د ده ټولو افرادو په لېمو منلي ؤ.

۱۰= پاچا ؤ : خو پاچاهی یې نه کوله ، ټـول ژوند یې د الله په لاره کې وقف کړی ؤ.

۱۱= د دنیا لذتونو ته یې شا کړې وه ؛ یوازې د یوه اسلامی نظام د (سرتاسری حاکمیـت) د پـاره به یې کوټلی ګامونه پورته کول.

۱۲= صحابی نه ؤ : مګر ژوند یې د صحابه ؤ په شان تېر کړ.

۱۳= پـه پـای کـې یـې د امـارت واګـې خپـل مرستیال (ملااخترمحمد منصور ) ته وسـپارلې ، او خپل زوی مولوی یعقوب یې خپل ځـای ناسـتی و نـه بللـو ، او هغـه امـارت یـې هـم ارثی نـه کـړ : چې اساس ، او بنیاد یې ده په خپله اېښي ؤ.

۱۴= پدې دومره لوي اقتدار کـې یـې بیـا هـم خپل اولاد ته ( په میراث کې ) نه شتمني پرېښوده ، او نه امارت ؛ نه یې له ځان نـه وروروسـته کـوم کـور پرېښود ، نه کوم مارکېټ ، یا دوکان.

په پای کې یې د ټولـو دښـمنانو آرمانونـه لـه خاورو سره خاورې کړل ، او د لوی اتل ((خالـد بـن ولید)) په څېر په خپلـه ملنګـی کوټـه کـې د حـق د لوری مسافر شو.

انالله و انا الیه راجعون.



# سقوط وفروپاشی محتوم اداره کابل

سعید بدخشانی

غرّش امواج خروشان عملیات عزم دشمنان دین وکشور را نهایت شتاب زده ساخته وهمه روزه سلسله برچیدن بساط منحوس ونافرجام اشغال ورژیم فرسوده آن رعد آسا جریاندارد وبه پیش میرود،این همه شهکاریها،تسخیر پاسگاه ها،قرارگاه ها،پوستهای امنیتی وولسوالیها وانجام حملات مسلحانه وتهاجمی در پایتخت کشور و مراکز ولایات این خود نماینگر نصرت الله جل جلاله وقوّت مجاهدین سلحشور وغیور امارت اسلامی افغانستان میباشد.

ازسوی دیگر صدای سقوط وفرپاشی حکومت مزدور از طریق رسانها وخود زمامدارن مسلوب الاختیار اداره بی کفایت کابل بلند میشود که سقوط پیهم ولسوالیهای برخی ازولایات یک خبر جدی وباعث گسترش قلمرو نیروهای طالبان وحاکمیت ایشان در کشور میباشد.

در این شکی نیست که مجاهدین امارت اسلامی فرزندان اصیل کشور وازمتن جامعه بروز کرده اند وازپشتیبانی اکثرقاطع ملت متدین کشور برخوردارهستند،لذا من به قاطعیت گفته میتوانم که نیروهای امارت بیش ازپیش قویتر وتوجه ملت را باخود جلب ودر راه حل وفصل مشکلات مردم در ساحات تحت قلمرو خود ازهیچ نوع همکاری دریغ نورزیده اند ونمی ورزند،درادامه باید گفت که ازقوّت،نبردخستگی ناپذیر چهارده ساله دربرابر اشغالگران خارجی ومتحدین بین المللی آنها همینگونه ازگامها وپیشرفت های سیاسی امارت اسلامی هیچ جناح چشم پوشی کرده نمیتواند لذا این یک امرمحتوم است که طالبان یک قوّت شناخته شده جهانی در افغانستان میباشند وخواهند بودند.

طالبان حکومت کرده اند وبقدرت خواهند رسید:

بلی!طالبان مدت پنج سال در افغانستان حکم فرمای نموده اند،امنیت بی نظیری درکشور تأمین نموده بودند که همه جهانیان به آن گواهی میدهند البته تأمین امنیت سرتاسری در تمام جهان به ویژه در کشورهای اسلامی علی الخصوص در افغانستان بدون تطبیق احکام شرعی وبرپای یک نظام اسلامی تحقق نمی یابد

ونخواهد یافت.به واقعیت چشم امید ملت در قیام نظام شرعی طالبان است وبس،بهمین دلیل گرایش مردم کشور به مجاهدین امارت اسلامی افزایش یافته است.

اتحاد عطاء نور ودوستم مشکل کشور راحل نه بلکه مشکل کشور رابیشتر خواهد ساخت.

در این اواخیر که فعالیت های جهادی مجاهدین در شمال کشور تشدید یافت حتی که منجر به سقوط چندین ولسوالیها نیزگردید این امر باعث وحدت جنگسالاران وقاتلان ملت (عطاء ودوستم)شد،این دو دانستند که دیگر ملت متدین کشور از ظلم،قتل،غصب جنایات نابخشودنی ایشان بستوه آمده اند لذا شاید بزودی شمار ولایات هم از کنترول اداره کابل بیرون شود واین امرسبب نابودی این جنایتکاران میشود به همین دلیل گردهم آمدند وشروع به ملیشه سازی وترویج مفکوره تفنگسالاری ومردم آزاری نمودند که این خود باعث هرج ومرج وفروپاشی حکومت مزدور شده است.

ملت غیور افغان باید بدانند که اتحاد چنین سفاکان هیچ درد آنهارا مداوا نه بلکه سبب افزایش بدبختی وجنایت خواهد بود.

بنظرمن یگانه راه حل معضله کشور خروج نیروهای تروریستی خارجی وتفاهم صادقانه وبی طرفانه خود افغانان ومراجعه به فرامین الهی خواهد بود درغیر آن جنگ در کشور ادامه خواهد یافت.

نظربعضی روزنامه نگاران درمورد سرنگونی اداره کابل:

روزنامه اطلاعات روز مینوسد: که موج اخیر ناامنی ها،حاکمیت دولت وحدت ملی را با چالش جدی مواجه ساخته وکم کم بحث بقا وسقوط حکومت به صورت جدی مطرح شده است.وزارت داخله نام نهاد اداره کابل میگوید بیش از بیست ولایت در معرض تهدیدوسقوط قراردارند،اماروز به روز دامنه ناامنی گسترش یافته و ولایت های بیشتری در معرض تهدید قرار میگرند.

با توجه به این واقعیت ها،چشم انداز آینده حکومت به شدت خطرناک وتیره می نماید.

من کاملاً متیقین هستم که ظلم،جبروبربریت اشغالگران ومزدوران آنها برمردم مظلوم وستمدیده کشور دیگر بقا نخواهد داشت عنقریب مظمحل ونابود خواهد شد،یگانه چیزیکه مشکل مردم را رفع میکند تطبیق عدالت، انصاف ،نظام شرعی واسلامی ودوری از تعصبات قومی،سمتی وقبیلوی میباشد.



## د الجزيرې مخکښ خبريال تيسير علوني:

# ملا محمد عمر يو تاريخي مشر!!!

(هافينگټن پوسټ )عربي ويبپاڼې د الجزيرې تلويزوني شبکې له هغه ژورنالېست سره د ملا محمد عمر مجاهد د ژوند او اند په اړه مرکه کړې، چې د طالبانو د واکمنۍ پر مهال کابل کې و او له هغو کمو خبريالانو څخه دی، چې ملا محمد عمر مجاهد سره يې ليده کاته شوي دي.تيسير علوني ۲۰۰۳ ز کال کې اسپانوي چارواکو په دې تور نيولی و، چې له خپل ژورناليستيک رسالته څخه يې ناوړه استفاده کړې او اسامه بن لادن سره يې د هغه مرکه ژورناليستيک جرم بللی و او له يو مياشت زندان وروسته بېرته خوشې شو. په ۲۰۰۵ز کال اسپانوي محکمې يو ځل بيا تيسير علوني په اووه کاله بند محکوم کړ او د بند مودې له پوره کېدو وروسته نوموړی يو ځل بيا خوشې شوی دی. د ملا محمد عمر د ژوند او اند په اړه مو د تيسير علوني څرگندونو پښتو ژباړې ته رابولو:

هافينگټن پوسټ :ملا محمد عمر مجاهد سره د ليدنې لامل، اغېز او شاليد په اړه څه وايې؟

علوني :ما ۲۰۰۱ز کال د اپرېل مياشت کې له ملا محمد عمر سره وليدل او همدغه مياشت کې مې د طالبانو هغه پلاوي سره هم د قطر پلازمېنې دوحې ته د الجزيرې تلويزون د خبريال په توگه سفر وکړ.

له دوحې د راگرځېدو پر مهال د طالبانو پلاوي بايد له ملا عمر سره د سفر د پايلو په اړه ليدلي وای، نو ما د طالبانو له يو چارواکي وغوښتل، چې ملا صيب سره د ليدو زمينه راته برابره کړي او چارواکي هم ژمنه وکړه، چې دا کار به کوي.

دغه مهال ملا محمد عمر له ژورنالېستانو سره خپل ملاقاتونه بند کړي و او لا مل يې دا و، چې ژورنالېستانو به د ملا محمد عمر په انځور وېستلو ټينگار کاو. په اولو وختونو کې د ملا عمر دفتر له ژورنالېستانو ژمنې اخيستې، چې د انځور اخيستو هڅې به نه کوي، مگر يو شمېر ژورنالېستانو به بيا هم د ژمنې ماتولو هڅه کوله او ما په دغسې يو سخت وخت کې د ملا محمد عمر د ليدو تلوسه کوله او ما دا خبره وکړه، چې زه د ژورنالېستيک رسالت لپاره ملا صيب سره نه گورم، بلکې زما يوازنۍ غوښتنه د ملا صيب ژوند په اړه معلومات او د ده ليدل دي.

ملا محمد عمر مجاهد زما غوښتنه ډېره ژر ومنله او په سبا مازيگر يې د «اميرالمؤمنين دفتر» ته وروغوښتم. دغه دفتر ته وروسته له هغې ورغلی وم، چې د نوموړي پخوانی دفتر د يوې چاودنې ښکار شوی و او دغې چاودنه کې د ملا صيب تره او ځينې نور

خپلوان وژل شوي وو او ما په خپلو سترګو هغه کنده هم وکتله، چې د چاودنې له امله رامنځته شوې وه.

د ملا محمد عمر دفتر او استوګنځای د عامو خلکو د کورونو په څېر و او د دفتر مخې ته هر ډول خلکو او موټرو د تلو راتلو اجازه درلوده.

موږ په وړوکي رسمي موټر کې په ډېره اسانۍ د ملا محمد عمر رسمي دفتر ته ننوتلو او د هغه ځینو همکارانو موږ یوې لویې خونې ته بوتلو، چې افغاني قالینې او له پاسه پرې وړې توشکې هوارې وې.

په دغه کوټه کې هېڅ داسې ځانګړی ځای، یا څوکۍ نه وه، چې نورو هېوادونو کې د مشر لپاره کېښودل کیږي او د خونې دیوالونه هم له هر ډول زینت او ښکلا بې برخې ساده پاده وو.

لږه شیبه وروسته ملا محمد عمر له خپلو دوو ساتونکو سره خونې ته راننوت او ناست خلک ټول د نوموړي سلام لپاره په کتار ودرېدل او زه په دغه کتار کې درېیم یا څلورم تن وم. د طالبانو د بهرنیو چارو وزیر، مولوي وکیل احمد متوکل زه ملا صیب ته وروپېژندم.

نری دنګ سړی و، توره ګڼه ږیره یې وه، یو نیم سپین ډکي هم په کې و، ښکلې څېره یې وه، افغاني دودیز کالي یې په تن و او توره افغانۍ لونګۍ یې پر سر وه. د سړي رعب او هیبت زه دې ته پرېښښودم، چې زه ملا صیب ته زیر زیر وګورم، مګر هغه مهال، چې نوموړی د خونې په ښي کونج کې کیناست، بیا مې له یو اړخه په زیر زیر وروکتل.

ښه مې په یاد دي، چې دغه پلاوي کې د بهرنیو چارو ویر مولوي متوکل، د پلان وزیر، د سترې محکمې رییس او ګڼ نور لوړپوړي چارواکي ملګري وو.

ملا محمد عمر خپلې خبرې د پلاوي په ښه راغلاست پیل کړې او وروسته د پلاوي هغه غړي خبرې پیل کړې، چې په عمر کې تر ټولو مشر- و او وروپسې هر یو دوحې ته د خپل سفر لنډیز وړاندې کړ.

ملا محمد عمر د پلاوي له ځینو غړو ځینې پوښتنې کولې او د ځینو خبرو سپیناوی به یې غوښت. د غونډې په پای کې ملا محمد عمر په پښتو ژبه لنډې خبرې وکړې او د غونډې یو ګډونوال زما غوږ کې د نوموړي خبرې په عربي ژباړلې او له خبرو وروسته نوموړی له خپلو څو ملګرو سره ووت. دغه مهال مې ځینې سر خریلي ماشومان ولیدل، نو د بهرنیو چارو وزیر راته وویل، چې دا د ملا صیب زامن دي. د دغو ماشومانو جامې د عادي افغانانو په څېر وې او هېڅ ځانګړی امتیاز یې نه درلود.

هافینګټن پوسټ: ستاسې شخصي- انګېرنه د ملا محمد عمر په اړه څه وه؟

علوني: لومړنۍ خبره خو دا ده، چې سړی ډېر دروند او بارعبه مشر و، خپلو همکارانو او کشرانو سره یې تعامل د پام وړ و.

ملا محمد عمر سره د لیدو پر مهال مې فکر وکړ، چې زه د یو رښتیني حاکم په حضور کې یم او سره له دې، چې واکمني یې ډېره ساده او له هر ډول رسمیاتو خالي وه، مګر بیا یې هم په جلسه رعب ډېر زیات و.

هافینګټن پوسټ: ایا د نوموړي امنیتي چارې او هغه سره لیدل ډېر سخت و او که اسانه او بله دا چې امنیتي تدابیر یې په اسانه له منځه تلی شوای کنه؟

علوني: داسې ځانګړي او قوي امنیتي تدابیر نه تر سترګو کېدل او زه خو له رسمي چارواکو سره ورغلی وم، نو ځکه هېچا را څخه هېڅ پوښتنه ونه کړه، مګر له

هافینګټن پوسټ: تاسې څه فکر کوئ، چې د ملا عمر وفات، یا وژل کېدل به د طالبانو په غورځنګ منفي اغېز ولري؟

علوني: که داخبره رښتیا وي، چې ملا محمد عمر دوه کاله وړاندې وفات شوی او تر اوسه د طالبانو د غورځنګ چارې همداسې په منظمه توګه پر مخ روانې دي، ورځ تر بلې پرمختګ کوي، د امریکایي ښکېلاک پر ضد یې مقاومت نور هم قوي شوی، که اوس هم دغه کړنلاره عملي او جاري وساتي او د خپل صف یووالی وساتي او د طالبانو صف کې د قیادت خلا نه شته او که څه ستونزه رامنځته کېږي، نو د بهرنیو او استخباراتي کړیو هڅې به وي. د ساري په توګه پاکستاني چارواکو ډېره هڅه وکړه، چې طالبان افغان حکومت سره خبرو ته کېنوي، مګر طالبانو وویل، چې افغان حکومت سره مذاکراتو نه دي تیار، نو پاکستان یوازې او یوازې هغه مهال بریالي کېدای شي، چې د طالبانو صف ووېشي، مګر زه فکر کوم، چې طالبان د دې توان لري، چې خپل صف متحد وساتي.

الجزیره: څه فکر کوې، چې ملا محمد عمر یو زعیم، دیني عالم، سیاسي او عادي سړی و؟

علوني: ما چې څومره د ملا محمد عمر سیرت او ژوند څېړلی، چې دی د افغانستان واکمن و او تر مرګه یې، نو زه ویلی شم، چې د ده په اړه خپل نظر داسې څرګند کړم:

افغانان سخت زړي او سرکشه خلک دي، دغه ولس په قومونو او قبیلو وېشل شوی او نوموړي سره له داسې مشکلاتو هم پر افغان ولس حکومت وکړ، نو ملا محمد عمر یو قوي زعیم او واکمن و. دا منم، چې ملا محمد عمر سیاسي زده کړې نه وې کړې، مګر په عامو افغانانو مې چې پوښتنې کړې، نو راته یې ویلي، چې دروازه یې د عامو افغانانو او په ځانګړې توګه د علماوو او رسمي مامورینو لپاره تل خلاصه وي او عام ولسي وګړو سره یې هم لیده کاته په ډېره اسانه کېدل.

ملا محمد عمر به له عامو مناسبتونو لکه د جعمې او اخترونو لمونځونو څخه هېڅکله هم نه غیبېده. ښار ته به هم په داسې وخت کې راووت، چې موټر به یې په خپله چلاو او چې د لمونځ وخت به راغی، نو خپله به جمعې ته وړاندې شو او لمونځ به یې ورکړ. ډېری وخت به مازیګر له خپلو ملګرو سره په چکر ووت، خپل څادر به یې ویړ کړ او خپلې خبرې به یې کولې. زه فکر نه کوم، چې ملا عمر دې کومه ورځ په څوکۍ کیناستلی وي.

په عامه توګه ویلی شم، چې ملا محمد عمر هېڅ سختو امنیتي تدابیرو ته اړتیا نه درلوده، ځکه چې ده ځان ولسي سړی باله او ټول کړه وړه یې د ولسي خلکو په څېر وو، هېڅکله یې ګڼ شمېر ساتونکي نه درلودل او نه یې د موټرو اوږده کتارونه خوښېدل او له شمالي ټلوالې پرته یې هېواد کې هېڅ دښمن نه درلود.

د طالبانو تر ټولو ستره توره دا وه، چې له سختو وحشي او ناامنه حالاتو وروسته یې افغانستان کې یو ځل بیا سر تا سري امنیت راوست.

ما چې دوه کاله د طالبانو د واکمنۍ پر مهال افغانستان کې تېر کړل، نو د امنیتي چارو ښه والی د واشنګټن او پاریس په څېر پرمختللو هېوادونو څخه څو چنده غوره و. د ملا محمد عمر دفتر مخې ته د چاودنې په اړه د طالبانو څېړنې دا وې، چې د بهرنیو استخباراتي کړیو لاس په کې و.

عملي ژوند کې یې او د خپلو تېروتنو څخه یې په ډېره بېړه عبرت واخیست او د ۱۹۹۴ز کال سیاست یې په راتلونکو کلونو کې ډېر ژر بدل کړ او ډېر ژر یې خپل کورني او بهرني سیاست کې یې بدلون راوست. په ډېره لنډه موده کې یې په سیاسي لوبو داسې سر خلاص شو، چې امریکایانو تل هڅه کوله، چې ملا محمد عمر سره اړیکې وساتي او طالبانو لپاره په قطر کې سیاسي دفتر پرانیزي تر څو له افغانستانه د خپلو عسکرو د وېستلو لپاره داسې یوه کړنلاره وټاکي، چې خپل ولس ته یې مخ روڼ وي.

امریکایان هڅه کوي، چې خپل ولس او نړۍ ته وښيي، چې دوی له افغانستانه په داسې حال کې ووتل، چې هېواد کې یې یو سالم نظام پرېښود، مگر ځمکني حقایق بیا دا وايي، چې افغانستان د امریکا له لاسه یو ناکام دولت دی. په ټولنیزو، سیاسي او اقتصادي چارو کې په بشپړه توگه ناکامه دی او په فساد کې د نړۍ وتلی دولت بلل کیږي.

امریکا چې پر افغانستان د یرغل پر مهال کوم هدفونه او موخې اعلان کړې وې، تر اوسه د دغو موخو په ترلاسه کولو کې پاتې راغلي او تر ټولو ساده مثال یې افغانستان کې د نشه یي توکو کرل او کاروبار دی او دوی هوډ کړی و، چې افغانستان کې به د نشه توکو کرکیله او کاروبار له منځه وړي.

په داسې حال کې د ۲۰۰۰ز کال په پای کې د ملا محمد عمر په یو فرمان په ټول هېواد کې د مخدره موادو کاروبار صفر ته راټیټ شوی و او د ۲۰۰۱ز کال په پسرلي کې نړیوالو ادارو وویل، چې افغانستان له اپیومو پاک هېواد دی، مگر د امریکایانو له راتگ سره افغانستان یو ځل بیا د اپیمو تر ټولو ستر تولیدوونکی هېواد شو. دا یې یو مثال دی. بل مثال یې دا دی، چې امریکا د ملا محمد عمر او اسامه بن لادن ځای نه سو پیدا کولای.

تاسې د نړیوالو ادارو هغه راپورونه هم وگورئ، چې افغانستان کې د امریکایي عسکرو او افغان دولت د فساد په اړه یې لیکلي دي او دا خو پرېږده، چې د افغانستان امنیتي او سیاسي وضعیت د امریکایانو له امله تباه و برباد دی.

زه فکر نه کوم، چې ملا محمد عمر ته دې دیني عالم ووایو، ځکه چې نوموړی د مدرسې طالب و، چې د شوروي یرغل له امله یې درسونه په نیمه کې پرېښودل او جهاد ته یې ملا وتړله.

زه په لنډو ټکو ویلی شم، چې ملا محمد عمر یو رښتینی افغان و او اصولي سړی و او داسې ډېره ستونزمنه ده، چې یو وخت کې دې سړی هم اصولي وي او سیاستوال.

د ساري په توگه ملا محمد عمر دا هېڅکله ونه منله، چې اسامه بن لادن او د هغه نور عرب ملگري امریکا یا د هغوی خپلو هېوادونو ته وسپاري او سره له دې، چې دی په دې خبره پوهېده، چې دا انکار به د ده لپاره ډېر تاواني وي او همداسې وشول. نو دا سړی مور یو عادي سړی بللی شو؟

هافینگټن پوسټ: ایا د ملا محمد عمر د شخصیت کومه ځانگړنه راته ښودلی شئ؟

علوني: ښه به دا وي، چې د ملا محمد عمر د شخصیت ځانگړي صفتونه او خویونه یې یاد کړو؛ ځکه چې د نوموړي مثبت اړخونه خو ډېر زیات دي.

زما د تجربې له مخې ملا محمد عمر مجاهد د کلمې په اصلي معنا یو نر سړی و او د سرېتوب ټول مثبت خویونه په کې راټول شوي وو.

حدیث شریف کې راځي، چې "لیس الشدید بالصرعة إنما الشدید الذي یملك نفسه عند الغضب" قوي او تکړه سړی هغه نه دی، چې ډېر زورور وي، بلکې قوي سړی هغه څوک دی، چې د غوسې پر مهال خپل نفس کنټرول کړای شي. زه دلته د ملا محمد عمر د جګړه ییز شجاعت خبره نه کوم، دا شجاعت خو یې ټولو ته معلوم دی، بلکې زه د ملا صیب رحمه الله د هغه قوت په اړه خبره کوم، چې حدیث شریف کې راغلي دي او هغه د غوسې پر مهال د نفس کنټرول دی. یو وار افغان عربانو (افغان عربان هغه اصطلاح ده، چې نړیوالو رسنیو افغانستان کې مېشتو عربو مجاهدینو ته کاروله) ملا محمد عمر مجاهد سخت غوسه کړی و.

هغه عربان چې د اسامه په مشرۍ په افغانستان کې اوسېدل، څو ځل ملا محمد عمر منعه کړي وه، چې له افغانستانه په نورو هېوادونو بریدونه ونه کړي او سره له دې، هم القاعدې په کینیا او تنزانیا کې د امریکا په سفارت برید وکړ، دغه مهال ملا محمد عمر القاعده مشران یو ځل بیا منعه کړل او ورته یې وویل، چې د ده له امره سرغړونه ونه کړي. له هغې وروسته القاعده یو ځل بیا یمن کې پر امریکایي بېړۍ «یو ایس ایس کول» برید وکړ، نو ملا عمر یو ځل بیا دوی ته وویل، چې بیا داسې ونه کړي او امر یې ورته وکړ، چې په دې اړه رسنیو سره خبرې ونه کړي او عربانو یو ځل بیا د ده له خبرو سرغړونه وکړه او سره له دې هم ملا محمد عمر رحمه الله د عربانو پر دې کارونو صبر وکړ او دا فکر یې وکړ، چې دا عرب مجاهدین مسافر دي او د شوروي یرغل پر مهال یې د افغانانو مرسته کړې او کړاوونه یې ګاللي دي. اوس که موږ تاسې که دغه تصور وکړو، چې موږ به یو چا سره له دومره زغمه کار واخلو؟ نو دې ته د نفس او عقل ضبط او کنټرول وايي.

په اخره کې غواړم، چې یوې خبرې ته اشاره وکړم، هغه دا چې ملا محمد عمر د اسامه بن لادن له هغو ارادو نه و خبر، چې ده ۲۰۰۱ سپټمبر د پېښې لپاره کوم پلان تیار کړی و.

دا باید ووایم، چې کله د بن لادن له خولې د امریکایانو د ځپلو خبرې راووتې، نو د دواړو تر منځ خلا رامنځته شوې وه. د سپټمبر له پېښې وروسته، چې د امریکایي یرغل شېبې رانږدې شوې ملا عمر او اسامه دواړو پرېکړه وکړه، چې د روانو ستونزو په اړه مخامخ سره ووینې. د ۲۰۰۱ز کال د اکتوبر په اوومه ماښام د ملا محمد عمر په استوګنځي کې سره وګوري؟ اسامه د ملا عمر دفتر ته پر لار و، چې امریکایي الوتکو بمبار پیل کړ او د ملا عمر دفتر یې هم بمبار کړ.

اسامه له نیمې لارې راوګرځېد، ملا محمد عمر په معجزانه توګه خوندي پاتې و او ځینې ساتونکي یې شهیدان شوي وه.

ایا زه به په دې وتوانېږم، چې د ملا محمد عمر صفت او ستاینه په څو جملو کې وکړای شم؟

له ټولو هڅو سره بیا هم په دې نه توانیږم، چې د ملا محمد عمر د ستاینې حق ادا کړم او دغه الفاظ نه لرم، بس دومره وایم، چې ملا محمد عمر یو بې ساری قاید، زعیم او مشر و.

(دنن ټکې آسیا نه په مننه)

# ملا عمر وکوچيد!

یادښت :(عبدالله محمد المحيسنى )دشام يو وتلى عالم او ليکوال دى ،نوموړي دعالي قدرامير المؤمنين ملا محمد عمر رح په باب اوښکي بهوونکى تاثر ليکلى، چې تاسوته به يې دترجمې له امانت سره کټ مټ خپور کړو) .

په هره حال کې ستاينې الله تعالى لره دي، له الله ج څخه سوال کوو چې له بې لاريتوب څخه مو وساتي، په هغه چا دې درود او سلام وي چې موږ ته يې دا خبره راښوولې چې دالله تعالى دين محفوظ دى چې دالله تعالى دين محفوظ دى دصادقو رجالو په ارتقاء او پورته کيدلو نه زيانمن کيږي.

ملا عمر وکوچيد داسې کلمه ده چې ما نه گمان کاوه او نه مې غوښتل چې داوريدو ورځې ته يې ژوندى پاتې شم، خو دالله تعالى عادت په دې جاري دى چې کل من عليها فان..

ملا عمر وکوچيد... هو وکوچيد خو!

چې دمسلمه امت راتلونکو نسلونو ته يې په توحيد باندې دثبات معنى ورښودله، دفداکارئ او استقامت په معنا يې پوه کړل.

ملا عمر وکوچيد! خو له هغه وروسته چې په عملي توگه يې مسلمانانو ته دسورة کافرون او سورة ممتحنه تفسير وکړ.

ملا عمر وکوچيد! خو له هغه وروسته چې کافرانو ورته وويل: چې بودا بوتان پريږده، موږ به مالي درسره وکړو خپل جهاد پرې کوه.

لکه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته چې کفارو ويلي وو، يو کال زموږ دبوتانو عبادت وکړه، او دا ژمنه درسره کوو چې يو کال به موږ ستا درب عبادت کوو.

ملا عمر وکوچيد! له هغه وروسته چې دامت په حافظه کې يې دا نقش کړل چې هر مصلحت ولو که هر څومره لوى وي خو دتوحيد دعقيدې دساتنې سره په ټکر کې شي نو هغه تش سراب دى، نو وگورئ هغه له ميليونونو ډالرو تير شو، خو شرک ته يې اجازه ورنکړه.

مــلا عمــر وکوچیــد! وروســته لــه هغــه چــې وربانديې دشوروي او ناټو امپراتورۍ راټولې شولې نو دهغـه ځـواب دا وو، حسـبنا الله ونعـم الوکیـل، نـو دهغوی دځواکونو زور وخوت لکه په ابراهیم علیـه السلام باندې چې اور بې وسه شوی وو.

ملا عمر وکوچید! له هغه وروسـته چـې دیـوه مسـلمان لپـاره یـې خپلـه پاچـاهي ځـار کـړه، داسـې کارنامې یـې ترشـا پریښـودلې چـې شـاید راتلـونکي نسلونه وربانديې دخیالي کیسو گمان وکړي.

هغه پـه لسـان حـال سره درسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم دا حـدیث ولوسـت :مسـلمان دمسـلمان ورور دی نه به یې دښـمن تـه سـپاري او نـه بـه ظلـم وربانديې کوي، نو زه هـم مسـلمان یـم خپـل مسـلمان ورور اسامه کافر ته نه سپارم.

پدې اړه په باریکو مسئلو پسې ونه گرځید چې دمصلحتونو په باب کې دځان لپاره لار پیدا کړي.

ملا عمر وکوچید! نوموړی له هغو لـږ کسـانو څخه وو چې زما دزړه دا ارمـان وو چـې ترهغـو مـړ نشم چې دهغوی په لیـدلو مـې سـترگې نـه وي یخـې شـوې، نـو ای الله !تـه مـو لـه هغـوی سره پـه جنـت الفردوس کې یوځای کړه.

ملا عمر وکوچید! وروسته له هغـه چـې خپلـه مشهوره مقوله یې وویله: (الله تعـالی دنصرـت وعـده راسره کړې او امریکا دماتې، زه به وگورم چې کومه وعده ډیره رښتونې ده) ای امامه! الله تعـالی رښـتونی کړلې، امریکا ماتې وخوړله..

ملاعمر وکوچید! راتلونکو نسلونو تـه یـې تـر شا ستر میراث او لویه مدرسه پریښوده، خلکو ته یې عمـلا وروښـودله چـې بریـا دصـف لـه وحـدت او یوموټې کیدو پرته امکان نه لري.

نو ای زما قومه! آیا د شام لپـاره کـوم مـلا عمـر نشته؟

ملا عمر وکوچید! له هغه وروسته چې خلکـو ته یې وروښودله چې له شرعي سیاست سره چې کله په ازښتونو باندې له ثبات او قربانیو سره مـل وي نـو سرسخته دښمنان زموږ دشرطونو منلو ته اړباسي.

په ټولـو خلکـو یـې دا حجـت قـائم کـړ چـې دربتوني اسلام نظام دحاکمیت لپاره )لکه څنگـه یـې چې الله جل جلاله غواړي) لیار یوازې جهاد في سـبیل الله دی، دیموکراسۍ او علمانیت دشریعت دنفـاذ لاره نه ده.

کوچیدلو یې غمژن کـړو، خـو زمـوږ لپـاره دا کفایت کوي چې دالله تعالی دین درجالو په فقدان نه دریـږي، زمـوږ لپـاره دا کفایـت کـوي چـې الله جـل جلاله په خپل دغه قول تربیه کړي یو. (ومامحمد إلا رسول قد خلت من قبله الرسل أفإن مات(....

ملا عمر وکوچید! زموږ لپاره دا کفایـت کـوي چې موږ پوهیږو چې ترشا یـې داسـې ملگـري پـرې ایښي چې دهغه یون به تکمیلوي او دهغه په مسیر به روان وي، موږ دطالبانو لښکر ته وایو: تاسـې زمـوږ دسرونو تاج یاستئ، ډیر ځلې مو ارزوگانې کړي چې کاشکې له تاسې سره وای، ثابت قدمه اوسئ، ای دالله ددین رجـالو، تاسـې دثبـات پـه لـوړو درجـاتو فـائز

یاستۍ، ای دتوحید رجالو! په خپل امیر ملا اختر منصور (حفظه الله وسددهپسې شاته روان اوسۍ، څکه تاسې په خپل ثبات باندې دعزت په لار کې قدمونه وهۍ.

ددغه امام په کوچیدلو باندې خپل ورور ملا اختر منصور ته، دطالبانو ټول لښکر ته، بلکه دجهاد ټولو جبهاتو ته او مسلمه امت ته تعزیت وړاندې کوم، دغه ورځ موږ ته دشیخ اسامه تقبله الله دکوچیدلو ورځ راپه زړه کړه..

ای امیره! دخپلو مشرانو په نقش قدم روان اوسۍ، شاته مه راګورۍ، دخراسان د بلادو لښکر دالله تعالی درضا لوري ته روان ساتۍ، دجهاد په لاره باندې منګولې ښخې کړۍ، مه سستي کوۍ او مه غمژن کیږۍ، دولس چارو ته پاملرنه وکړۍ له ځان سره یې په کارونو کې شریک کړۍ، دیته ډیر حریصان اوسۍ چې هغوی هم ستاسې لار خپله کړي، هغوی ته داسلامي عقیدې او احکامو دښوونې خاصه توجه وکړۍ، دزمکې ټول طاغوتان سرکوب کړۍ، دلارې اوږدوالی او سختی مو ونه ویروي، الله تعالی له تاسې سره خپله وعده پوره کړه، او هغه څه یې دروښودل چې تاسې خوښول.

ملا عمر وکوچید! خو ای کاش چې په شام کې هم موږ یو ملا عمر درلودای!!

دجهاد او رباط له زمکې څخه له تاسې سره مینه لرونکی.

# انقلاب دی

سید احسان الله الهام

له پیریو د وامداره انقلاب دی
تاند زلمي وړي له کتاره انقلاب دی

وحشتګرې تروږمی دي آسمان تور دی
لویږي ستوري له مداره انقلاب دی

دلته ورځي تر ماښامه انقلاب وړي
دلته شپې نه تر سهار انقلاب دی

وران دی کلی دی که ښار دی په مر میو
تر سینو خېږي خارداره انقلاب دی

له مالیاره د بڼ لاره تری تم ده
له خزانه تر بهاره انقلاب دی

لا وخه ته انتظار کوې ښاغلیه!
آس دي زین کړه خدای دپاره انقلاب دی

تر ابده مو په ژبه حق اقرار دی
درنه ډار نه لرو داره انقلاب دی

ستاپه پلو څو لا دمه مو کړې نده
لا دعوة کړو لا سرداره انقلاب دی

که هر څو تیر شي په ویر مو اخترونه
نه پریږدو سپیڅلې لاره انقلاب دی

آزادی کي به دي ټول نازونه وړمه
اوس دعا کړه " الهام" یاره انقلاب دی



## ملاعبدالحی مطمئن په یوه مرکه کې :

# د فتنې دروازه بنده شوه

# او د دښمن ارمان نیمه خوا شو !

**مولوي عبدالحی مطمئن د طالبانو دحکومت پر مهال د مشر ، ملا محمد عمر مجاهد ویاند پاتې شوی. ښاغلی مطمئن لیکوال او شاعر هم دی، چې روانې پېښې له نژدې څاري. داسلامي امارت رهبري شوری او دهیواد مشایخو د زمري په اتمې (جولای ۳۰مې) قدرمن ملا اختر محمد منصورصیب داسلامي امارت دنوي زعیم په توګه اعلان کړ. ځینو رسنیو د اسلامي امارت دمشر تابه په لیکو کې د اختلافاتو راپورونه خپاره کړل. د دې لپاره چې مسئله ښه روښانه شي، له درانه ملا عبدالحي مطمئن مرکې ته مو پام رااړوو:**

**پوښتنه :** ځینو رسنیو داسې راپورونه خپاره کړي، چې د طالبانو د نوي مشر ټاکنه له اختلافونو سره مله وه. ایا رښتیا اختلافونه شته؟

**ځواب :** الحمد لِواحد القهار و الصلاة والسلام علی اشرف الابرار وعلی اله واصحابه الاخیار: لومړی د رب العالمین له درباره د مسلمان امت د یوویشتمې پیړۍ د ستر مجدد حضرت امیرالمومنین رحمه الله روح ته د بې شمېره رحمتونو او لوړو مقامونو غوښتنه کوم او د مرحوم درنې او مجاهدې کورنۍ ته د رب العالمین له درباره د صبر، زغم او د دنیا او اخرت د سرلوړیو غوښتونکی یم.

د امیرالمومنین رحلت او وفات یقیناً کومه وړه حادثه نه ده او د هغه ځای ډکول هم تقریباً ناشونی کار دی، خو د هغه وفات د هغه د موقف او د غه جهادي خوځښت وفات نه دی، دا تحریک چې په کوم مسیر روان دی، نو هغه مسیر هم معلوم دی، پیروان او مشران یې هم معلوم دي.

البته د اسلامي امارت په وړاندې دښمنان په سیاسي، پوځي او تبلیغاتي میدان کې تل همداسې ستري پیښې ته د یو فرصت په سترګه ګوري، که په داسې وخت کې د اسلامي امارت په خلاف یوه غوماشې هم وبونیږي نو نړیواله دستوري میډیا به د هغه اواز بروډکاست کړي او انعکاس به ورکړي.

په دغه حساس وخت کې هر هغه مسلمان، چې د الله پر دین، د الله پر کلام او د رسول الله په سنتو ایمان او عقیده ولري او د الله په وړاندې پر حساب ورکولو یې باور وي؛ هېڅکله به د خپل شخصي خواهش او نفسي غوښتنې پر اساس ځان د مسلمانو ترمنځ د فتنې سبب جوړ نه کړي او نه به د مغرضو خلکو په ناوړه مشورو د اختلاف غړ پورته کړي.

په اوس وخت کې دا له عقله لېري او محاله خبره ده، چې د یوه تحریک فرد فرد دې ټول د یو چا پر مشري متحد شي دا چې په دومره سختو او ضیقو شرایطو کې د یوه تحریک قاطع اکثریت پر یو امیر متحد کېږي د ایوازې او یوازې د الله تعالی نصرت دی.

د نوي امیر جناب منصور صاحب د ټاکل کېدو پر ورځ چې ما د میډیا له لارې د اختلاف په اړه پیچده ګنګوسې واورېدې نو زه په خپله ډېر زیات اندېښمن وم، یو ځای د امیرالمومنین رحمه الله د تلپاتې جدایي غم او بل خوا د اختلاف او فتنې خطرناک زنګ راته د غم د پاسه بل غم و.

خو نن او پرون چې ما په تفصیلي توګه له حقایقو ځان خبر کړ، اوس د الله تعالی حمد او شکر ادا کوم، چې د امارت د مشرتابه پریکړه یوازې د څو محدودو ورونو له وجود او نارضایتي پرته په عامه توګه اتفاقي او اکثریتي ده او په جهادي صفونو کې یې پراخ او تود هرکلی شوی او روان دی.

د امارت ټولو مشهورو او بانفوذه څېرو، علماوو، ولایتي او محلي مسوولینو، ډلګي مشرانو او د ټولو کمیسونونو مشرانو حضوري او غیابي بیعتونه وکړل.

د الله حمد ادا کوم چې د فتنې دروازه بنده شوه او د دښمن ارمان نیمه خوا شو.

**پوښتنه:** تاسو د «محدودو ورونو» یادونه وکړه، دغه «محدود ورونه» څه غواړي او ولې ناراضه دي؟

**ځواب:** د هغوی مواقف او مقاصد هم متفاوت ښکاري، یو یا دوه خو یې نېکه سابقه لري ښایي په اجتهادي غلطۍ کې مبتلاوي او د جزئي مسایلو پر سر د اختلاف درنې فتنې او ترخې نتیجې ته متوجه نه وي.

او د یو څو په اړه یې مجبوریم چې پر دې تریخ حقیقت اعتراف وکړم چې له بده مرغه د سیمه ییزو خفیه حلقو تراغیز لاندې دي.

البته هغوی، چې د امیرالمومنین رحمه الله د درنې کورنۍ او محترم مولوي صاحب یعقوب او محترم مولوي صاحب عبدالمنان نومونه یادوي؛ زما په فکر دا یوازې د اذهانو د جلب یوه وسیله ده.

تر کومه ځای چې ما څېړنه کړې، مولوي یعقوب صاحب او مولوي عبدالمنان صاحب د مشرۍ غوښتنه او خواهش نه لري

د هغوی بې طرفه موقف هم زه امېد لرم، چې د خپلمنځي اصلاح سبب وګرځي او هغوی به دغه حساس وخت ته په کتلو هېڅکله ځان د فتنې سبب و نه ګرځوي او نه به د اميرالمومنين پر نوم او تاريخ داغ کښېږدي.

خو د امارت مشرتابه ته پکار دي، چې د اميرالمومنين کورنۍ له ځانه سره تر بل هر چا نږدې وساتي او خپل اهل رازيې وګرځوي.

لکه څرنګه چې په اسلام کې د امارت د موروثي کېدو کوم اصل نشته همدارازپه دې اړه د اميرالمومنين رحمه الله په ژوند کې هم موقف ډېر واضح و.

حتی هغه د خپل کورنۍ غړي ته د کوم منصب د سپارلو په حق کې هم نه و.

يو ځل مولوي محمدنبي محمدي مرحوم کندهار ته په يو سفر راغلی و، اميرالمومنين رحمه الله ته يې د خپلو مشورو په لړ کې دا هم وويل، چې ځان ته پخپل ژوند کې وليعهد وټاکي تر څو دې د وفات پر مهال اختلاف رامنځ ته نه شي.

په دې لړ کې يې د اهم ورته وويل چې که د خپلې کورنۍ نه کوم وړ کس وګوري، پر اميرالمومنين د اخبره بده ولګېده؛ ځکه چې د مسلمانانو مشري يې ميراثي نه ګڼله.

رښتيا هم په اسلامي شريعت کې د ميراثي مشر توب اصل نه شته. په خلافت راشده کې نه ابوبکرصديق، نه عمر فاروق، نه عثمان او نه علی رضي الله عنهم خپلو اولادونو ته دا حق ورکړ او نه مسلمانان په دې کار متفق شوي دي.

کنه ابوبکر رضي الله عنه هم اهل اولاد لاره او عمر رضي الله د عبدالله بن عمر په څېر عظيمه هستي په کور کې لرله، خو نه يې ده د مشرۍ وصيت وکړ او نه مسلمانانو وټاکه؛ ځکه چې د مسلمانانو زعامت ميراثي نه دی.

ابن حزم رحمه الله په دې اړه ليکلي:

"لاخلاف بين احد من أهل الاسلام في آنه لايجوز التوارث فيها"

**ژباړه:** د اهل اسلام ترمنځ په دې خبره کې هېڅ اختلاف نشته چې په خلافت کې وراثت جايز نه دی.

د طالبانو تحريک او اسلامي امارت، چې په څومره پيچيده شرايطو او درنو چلينجونو کې مزل وهي، نو د دې مشري کوم نعمت او يا مقام نه دی، بلکې يو بې ساري درون بوج دی چې او چتول او ساتل يې د هر چا کار نه دی.

يو نوی زلمی که هر څومره زيرک، متدين او مخلص شي، خو د نه تجربې او د تحريک له لوړو ژورو د نه خبرتيا له امله دغه درون بار نه شي سمبالولی او نه بايد دا ظلم ورسره وشي.

**پوښتنه :** ستاسي په وينا «دغه وروڼه» د ځينو نورو مهمو څېرو نومونه هم اخلي، لکه عبدالقيوم ذاکر

او عبدالسلام کاتب، په دې اړه ستاسې څه معلومات دي؟

**ځواب:** جناب مجاهد ورور عبدالقیوم ذاکر صاحب یو مخلص او متدین مجاهد دی، چې په دې لاره کې یې خورا ډېر مشکلات ګاللي. هغه د امارت د وحدت تر ټولو ستر حامي دی، لومړی د هغه په اړه همدغه خبر ما ته هم رسیدلی و، خو پرون مې د یو دوست په واسطه رابطه وشوه او د هغه له نارینه او مخلصانه دریځ څخه مطمین شوم.

ذاکر صاحب پرون د فرهنګي کمېسیون مشر ته وویل، چې زما په اړه د مخالفت ادعا زه رد کړم او که یې تاسو زما په استازیتوب ردوئ. هم هغه و، چې د هغه له خوا پرون تاییدي پیغام خپور شو.

همدا راز محترم مولوي عبدالسلام کاتب له اولې ورځې د شورا او مشرتابه تر څنګ ولاړ دی. زما د معلوماتو پر بنسټ دا اوازې او دعوې بې ځایه دي.

**پوښتنه:** ستاسو په اند دا ډول اختلافات د طالبانو تحریک لپاره څومره خطرناک دي؟

**ځواب:** اصلا د مشرتابه د تعیین موضوع له همدې امله په اسلام کې خورا حساسه ده او په اړه یې نصوص هم خورا قاطع دي.

کوم وخت چې ما حدیث لوستل زه دې ته ډېر حیرانېدم، چې کله به مې د خلافت په اړه په حدیثو کې قاطعیت تر سترګو شو.

یو ځل په مسلم شریف دا حدیث مخې ته راغی:
"إذا بويع لخليفتين فاقتلوا الآخر منهما"

**ژباړه:** کله چې له دوو خلیفګانو سره بیعت وشي، ورستنی یې ووژنئ.

بل ځل مې د بخاري شریف په کتاب الانبیاء کې د یو حدیث دا توري تر سترګو شول "سيكون خلفاء فيكثرون قالوا فما تأمرنا قال فوا ببيعة الأول فالأول"

ژباړه: خلیفه ګان به وي او ډېر به وي، صحابه وو عرض وکړ یا رسول الله بیا په دې وخت کې موږ ته څه حکم دی؟ رسول الله وویل: له چا سره چې مو اول بیعت کړی وي له هغه سره وفادار اووسئ او بیا چې له هغه وروسته له چا سره لومړی بیعت وشي له هغه سره وفادار اووسئ.

اوس چې د دې مرحلې په حساسیت او خطرپوه شوم نو واقعاً د اسلام دغه قاطعیت ډېر زیات له حکمت او د مسلمانانو له مصلحته ډک دی!

دا چې اوس اسلامي امارت په ډېر حساس حالت کې قرار لري او له هر لوري د ښمنان ورته متوجه دي، نو هره حنجره چې په دې وخت کې د اختلاف توری تلفظ کوي، هغه د ښمن نامستقیم لوډ سپیکر دی؛ ځکه باید ورونه د وړو او شخصي مسایلو پر ځای سترو مقاصدو ته متوجه شي.

**پوښتنه :** په دې اړه د قومي توپیرونو او قومي پاټ بازیو خبرې هم په رسنیو کې کیږي دا څومره حقیقت لري؟

**ځواب :** تاسو ته معلومه ده چې د قومیت نامقدس عنصر د اسلام له روح سره په ټکر کې دی، نو دا ډول خلک، چې قومي روحیې لري، له اسلامي تحریکونو او نظامونو سره هېڅ تړاو نه لري.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي " :لَـيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ ، وَلَيْسَ مِنَّا مَـنْ قَاتَـلَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ ، وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ "

**ژباړه:** څوک چې د قوم (قبیلې) لپاره دعوت کوي هغه زما له امته نه دی، څوک چې د قوم لپاره جګړه کوي، زما له امته نه دی او څوک چې د قوم پرستي په لاره کې مړ شي، زما له امته نه دی.

له دومره درانه وعید څخه ښکاري، چې الله تعالی له داسې خلکو بېزاره دی او دا ډول خلک له اسلامي خوځښتونو او تحریکونو سره اړه نلري، بلکې په قومي غورځنګونو او قومي اتحادیو کې ځای پیدا کولای شي.

امیرالمومنین رحمه الله له دغه نامقدسه عنصره دومره بد منل چې کله به چا ترې د قوم قبیلې پوښتنه وکړه، نو رنګ به یې تغییر کاو او مخ به یې بل لور ته اړاو.

زموږ د تحریک مشران په قاطع اکثریت په دې اړه پاک وو. له څه محدودو خلکو پرته دا عنصر په چا کې نه تر سترګو کېدو، په ځانګړې توګه په مهمو مشرانو کې.

د ډېرو مشرانو د قومونو نومونه موږ په میډیا کې اورو، په شل کلنه انډیوالي کې مو له هغوی نه د قوم پوښتنه نه ده کړې؛ ځکه چې دا ډول پوښتنه یو عیب وه.

البته یو شمېر خلک په دې ناکاره ناروغي اخته دي او له همدې امله په مهمو مشرانو هم د ځان ګمان کوي او بې ځایه بدګماني کوي.

ډېر وخت په یو کار کې دوه مسوولین د یوې قبیلې ټاکل شوي وي او مشرانو دا کار په غیر شعوري توګه کړی وي؛ ځکه چې مشران نه له چا د قوم پوښتنه کوي او نه قوم ته متوجه دي، نو بیا دغه مغرض اشخاص له دې کاره تبلیغاتي ګټه اخلي او په مشرانو نور افراد بدګمانه کوي او پروپاګند کوي.

په حقیقت کې دغه عنصر په عامه توګه د امارت په صفوفونو کې هېڅ کوم حثیت نلري.

(له نن ټکي آسیا نه په مننه)

# مقاصد و اسرار حج

ضیاء أحمد ناطق

{ وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا }
(آل عمران:۹۷)

بي‌تردید حج یکي از عبادات بي‌نظیر اسلام‌است که همه‌ي اندیشمندان دنیا را در برابر خود به شگفتي و حیرت واداشته‌است.

این اجتماع سالیانه‌ي چند ملیوني امت اسلامي از چهارگوشه‌ي جهان با رنگ‌ها، نژادها و چهره‌هاي گوناگون در قلب جهان اسلام و حضور در اماکن مقدسي چون: کعبه، منـي، مزدلفه و عرفات.. و انجام شعایري چون طواف، سعي، قرباني، تضرع به درگاه خدا، سنگسار کردن نماد شیطان؛ آن هم در حالت تجرد از تمام تجملات دنیا –حتي از لباس دوخته- و مستغرق شدن به یاد الله، در فضاي از شور و هیجاني که در وصف نمي‌گنجد، همه و همه اموري هستند که جاذبه‌ي اسلام و عطش دیني امت اسلامي و حکمت‌هاي حیرت آور احکم الحاکمین را به تصویر مي‌کشد.

خداوند به آن دسته از بندگانش که از تمام مظاهر دنیا و وابستگي‌هاي کاذب‌آن تهي شده و به این اوقیانوس بي‌کران اخوت و معنویت مي‌پیوندند، منافع فروان و بي حد و حصري نوید داده‌است:

»وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَى كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ لِيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ« (حج/۲۷-۲۸) «به مردم اعلام کن که پیاده و بر شتران باریک اندام، راه هاي فراخ و دور را طي کنند [به حج کعبه بیایند] تا منافع خویش را باچشم خود ببینند

راستي، این منافع کدام‌ها اند و آیا براي ما قابل درک‌اند؟

در این مقال بر آنیم تا اهم آن منافع را –تا آن جا که عقل قاصر ما آن را دریافته‌است- به قرار زیر روشن نماییم:

اول: توحید و اخلاص:

بي‌تردید با ارزش ترین عطیه ي حج، همانا توجه بي‌شائبه به پروردگار، احیاء یکتاپرستي، اخلاص و قلع و قمع شجره ي خبیثه ي شرك و توجه به غیر خد است. از نظر قرآن، حتي بناي کعبه نیز به همین منظور بوده است: «وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ أَن لَّا تُشْرِكْ بِي شَيْئًا وَطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْقَائِمِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ»

(حج/٢٦) «و زماني[را به خاطر بياور] كه محل خانه ي كعبه را براي ابراهيم آماده ساختيم و آن را بدو نموديم(و دستور داديم) كه چيزي را شريک من مساز! و خانه ام را براي طواف كنندگان و قيام كنندگان و ركوع برندگان و سجده كنندگان (از هرگونه آلوده‌گي ظاهري و معنوي[چون شرك و توجه به غيرخدا])تميز و پاكيزه گردان.«!

هركه جريان عملي حج پيامبر صلى الله عليه وسلم را مطالعه كند، با مشاهده‌ي اعلان توحيد از آن‌حضرت در جاهاي فراوان، اين حقيقت برايش مشهود خواهد شد؛ آن حضرت فراوان بدان عطف توجه كردند، منجمله:

**در تلبيه**: «لبيک اللّٰهُمَّ لبيک، لبيک لاشريک لک لبيک، ان الحمد و النعمة لک و الملک، لاشريک لک.«

»**خداوندا!** دعوتت را بار بار اجابت كردم، و به بندگيت آماده ام، ترا شريكي نيست، حقا كه هر ستايش، نعمت و فرمانروايي شايسته ي تست، تو از شرک مبرائي» (صحيح المسلم). درين عبارت كوتاه، چهار بار واژه‌ي «لبيك» (بار بار به خدمت ايستاده‌ام) تكرار شده است و دو بار شرك از ساحت مقدس الله جل جلاله نفي شده‌است و هر گونه ستايش، نعمت و فرمان روايي منحصر در ذات با عظمت پروردگار قرار گرفته‌است، راستي آيا كلماتي بهتر از اين و جود داشته مي تواند كه توحيد الله جل جلاله را با اين گستردگي و عمق، ترسيم نمايد؟ از همين جهت، پيامبر صلى الله عليه وسلم گفتن آن كلمات را از بهترين اعمال حج خوانده و ياران گرامي شان آن چنان به كثرت آن شعار را زمزمه مي‌كردند تا آن‌جا كه آواز شان مي‌گرفت.

### در مطالبه ي اخلاص از خداوند(ج):

چنانچه از پروردگار شان مسئلت نمودند كه: « بار الها! حجي نصيبم كن كه هيچ گونه رياء و سمعه اي دران نباشد»(ابن ماجه).

در قرائت سوره هايي«كافرون» و «اخلاص» در دو ركعت طواف؛ سوره هاي كه بيانگر توحيد عملي و نظري براي الله جل جلاله است.

در بيان توحيد خداوند در صفا و مروه با اين كلمات شيرين: «لا اله الا الله وحده لاشريک له ، له الملک و له الحمد و هو علي شيء قدير، لااله الا الله وحده، انجز وعده، و نصرعبده و هزم الاحزاب وحده». «جز الله هيچ معبودي كه سزاوار پرستش باشد وجود ندارد، او يگانه است، شريكي ندارد، ملک و فرمانروائي از آن اوست، او شايسته ي هر گونه ستايش‌است و او بر هر چيز توانا است. جز خداوند هيچ معبود سزاوار پرستش وجود ندارد، او يكتا است، به وعده اش به درستي وفا كرد و بنده اش را نصرت بخشيد و احزاب كفر را به تنهائي شكست داد.«

**در دعاء:**

آنگاه که بنده با تمام وجود خاشعانه و با بيم و اميد وبا قلبي سرشار از توجه و تضرع و ابتهال به پروردگارش رو مي آورد، اين به حق از بزرگترين مظاهر توحيد است.

پيامبر اسلام در حجة الوداع در شش موقف به مدت طولاني به دعاء پرداختند: بر فراز صفا و مروه، در عرفه، در مشعر الحرام، به دنبال رمي جمرات و در ساير ايام تشريق. پس چه زيبا است به کسي که خداوند او را به زيارت اين ا ماکن مبارک شرفياب مي سازد که اين معاني شريف را درک کند و جانش را غبار روبي نموده و قلبش را صيقل زند و ريشه هاي توحيد را در اعماق وجودش بگستراند.

البته همچنان که کعبه خانهي خدا در روي زمين است و توسط حاجيان و عمره کننده گان طواف ميشود، قلب مسلمان خانهي خدا در وجود بنده است که ميبايد بنده ي مسلمان با خوف، رجاء، محبت، توکل ، رجوع الي الله، استعانت و استغاثه به الله آن را طواف کند.

بناء بر اين بيمناسبت نبوده که پيامبر اسلام بهترين دعاء را دعاء در روزه عرفه (بهترين روزي که خورشيد دران طلوع کرده است) و عالي ترين ذکر را همان توحيد الله جل جلاله معرفي نمايند: «بهترين دعاء، دعاء روز عرفه است، و بهترين آنچه من و پيامبران پيش از من گفته اند، اينست:«لا اله الا الله وحده لاشريک له، له الملک و له الحمد و هو علي کل شيء قدير» (ترمذي).

**دوم: طاعت و فرمان پذيري:**

هيچ عبادتي از عبادات اسلامي همچون حج نيست که اين همه فرمانپذيري تام و پيروي مطلق از پيامبر اسلام –چيزي که حتي معناي لغوي اسلام و مسلمان هم بيآن بيمعناست- دران متجلي گردد، چنانچه حاجي در ميان مناسک متنوع و مشاعر متعدد -که براي بسياري از آن ها جز طاعت امر خدا و پيامبرش معني ديگر نمي شناسد- در گردش و انتقال است؛ چنانچه يکبار سنگي را مي بوسد و بار ديگر سنگي را مي زند، از مشعري ميگذرد تا به ديگري برسد و باز به اولي بر ميگردد. هفت بار طواف و هفت بار سعي مي کند، هفت سنگريزه پرتاب مينمايد، بدون اين که معناي خاصي براي اين عدد بداند.

به راستي، حج نشان داد که اصحاب پيامبر صلى الله عليه وسلم در اطاعت کامل و بيدرنگ از رسول خدا صلى الله عليه وسلم چقدر ممتاز بودند و چه نيکو در خشيدند! اين امر را ميتوان از خاطرهي فراموش نشدني حضرت جابر τ فهميد. وي منظرهي تجمع مسلمانان در بيرون مدينه -هنگامي که ميان قبايل اعلان شد که رسول الله صلى الله عليه وسلم امسال عازم حج هستند- را چنين به تصوير ميکشد:

..»پس نگاه کردم، در پیش رو، راست و چپ آن‌حضرت صلی الله علیه وسلم تا آن جا که چشم کار مي‌کرد، مردمان-اعم از سواره و پیاده- دیده مي‌شدند، آن حضرت صلی الله علیه وسلم در میان ما بودند و براي شان قرآن نازل مي شد و ایشان تأویل و تفسیر آن را مي دانستند و هر چه ایشان مي کردند، ما هم انجام مي دادیم»(مسلم). « هیچ کسي نماند که قدرت سواره یا پیاده آمدن را داشته باشد، جز این‌که آمد»(نسائي). «هرکدام شان در پي آن بودند که به رسول الله صلی الله علیه وسلم اقتداءنموده و همانند ایشان عمل کنند»(مسلم.(

این حضرت عمر رضی الله عنه است که هنگامي که به تأسي از پیامبراسلام حجراسود را بوسید فرمود:

»من به خوبي مي‌دانم که تو سنگي هستي که قدرت ضرر و نفع رساندن به کسي را نداري، اگر چنان‌چه من رسول خدا را نمي دیدم که ترا بوسیدند، من ترا نمي بوسیدم» (صحاح سته). هم چنانکه باز از حضرت وي ثابت است که در اثناي انجام رمل(چابکانه قدم برداشتن) در سعي میان صفا و مروه، فرمودند: « مارا به رمل چه‌کار؟ ما که این کار را به قصد نشان دادن به مشرکین انجام داده بودیم و الآن الله تعالي آن‌ها را هلاک ساخته است» ولي سپس بعد از تأملي، فرمودند: «این چیزي است که رسول خدا انجامش دادند، پس دوست نداریم که رهایش نمائیم»(بخاري)

صحابه‌ي‌کرام -چه درحج یا غیر آن-از پیامبر اکرم نمي پرسیدندکه این واجب است یاسنت؟ بلکه رهنمود هاي شان را بزرگ مي‌دانستند و دران به چانه زني نمي‌پرداختند و همانند برخي از مردمان امروز در پي گریز از زیربار احکام دین و فتوا هاي شاذ نبودند و به مقتضاي فرمان آن حضرت صلی الله علیه وسلم عمل مي کردند که فرموده بودند:

»خویشتن را از آن‌چه منع کردم، باز دارید و آنچه را دستورتان دادم تا آنجا که در توان شما است، به‌جا آرید»(بخاري و مسلم.(

پس تربیت شدن بر پیروي بي‌چون و چرا و صادقانه از پیامبر اسلام، دومین ارزشي‌است که مي‌باید حاجي ما از این سفر مقدس با خود به ارمغان آورده و از آن پس در تمام امور و ادوار زندگي‌اش از آن الهام بگیرد.

سوم: اقامه‌ي ذکر و یاد الهي:

بي‌گمان از بزرگترین و مهمترین مقاصد حج، اقامه‌ي ذکر و یاد الهي‌است .به راستي هر که آیات مربوط به مناسک حج را بخواند، تکرار ذکر و یاد الله متعال را در پي هر یک از مناسک حج ملاحظه خواهدکرد. في المثل، خداوند بزرگ مي فرماید:

»فَإِذَا أَفَضْتُم مِّنْ عَرَفَاتٍ فَاذْكُرُواْ اللَّهَ عِندَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدَاكُمْ... فَإِذَا قَضَيْتُم مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُواْ اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءكُمْ أَوْ أَشَدَّ

ذِكْرًا» «و هنگامي كه از عرفات روان شديد، در مشعر الحرام، خدا را ياد كنيد، و همانگونه كه شما را رهنمون كرد، به ذكر و يادش بپردازيد... و چون مناسک حج خود را به جاى آورديد همان گونه كه ازپدران خود(در عهد جالهيت)ياد مى كرديد-يا بيشتر ازآن- خدا را ياد كنيد.«

»وَاذْكُرُواْ اللّهَ فِي أَيَّامٍ مَّعْدُودَاتٍ» (بقره/ ۲۰۳)

«خداوند جل جلاله را در روز هاي چند(ايام تشريق)ياد كنيد.«

»وَلِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا لِيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَى مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ» «و براي هر امتي قرباني را(كه سمبول فدا شدن در راه خدا است)مقرر كرديم تا نام خدا را بر دامهاى زبان‌بسته‌اى كه روزى آنها گردانيده ياد كنند.« پيامبر اسلام مي‌فرمايند: «همانا طواف كعبه، سعي ميان صفا و مروه و رمي جمرات به خاطر اقامه‌ي ذكر و ياد خداوند در روي زمين است.«

پس براي كسي كه خداوند او را به اقامه‌ي ذكر خود در حج گرامي داشته، شايسته است تا اين درس را هميشه محفوظ داشته و ذاكر، شاكر و ستايشگر خداوند در تمام حالات و ادوار زنده‌گي بوده و اين توصيه‌ي پيامبر صلى الله عليه وسلم هميشه مد نظرش باشد؛ آنجا كه فرمودند: «همواره زبانت از ياد خدا تر و تازه باشد». (احمد و ترمذي(

چهارم: ولاء و براء يا دو ستي و دشمني:

شگفتا به اين دين بزرگ كه چگونه وحدت و يكپارچگي بي‌نظير و به هم پيوستگي عميقي را در روح و جان پيروانش پرورش مي‌دهد، روي فاصله هاي زماني و مكاني پا مي‌گذارد و بر تفاوت هاي نژادي و اجتماعي غلبه مي‌كند، وسد هاي اختلافات سياسي و مادي را درهم مي‌شكند، و زبان و فرهنگ هاي مختلف، اقوام و ملل گوناگون را در بحر بزرگي به نام«امت اسلامي»ذوب مي سازد.

راستي، آنگاه كه عربي با فصاحت و عجمي با لكنت زبان«لا اله الا الله محمد رسول الله»را بر زبان مي آورد..

و آنگاه كه در نماز هاي پنجگانه پشت سر امام واحدي در جمع هم‌كيشانش قرار مي‌گيرد تا براي خداي واحدي نماز بخواند..

و آنگاه كه توانگر مسلمان، بخشي از مالش را به حيث زكات براي برادران نياز مند خودجدا مي‌كند..

و آنگاه كه بيشتر از يک مليارد مسلمان، در ماه واحدي دست از خورد و نوش برمي دارند..

و آنگاه كه هر ملتي، جمعي از كسان خود را به منظور اداي مناسک حج مي‌فرستند تا در فضاي آكنده از صفا و صميميت مراسم حج‌را به‌جا آورند..

آنگاه كه اين امور و امور مشابه ديگر انجام مي‌پذيرد، يكي از مقاصد بزرگ دين، به وضوح

آشکار مي‌شود که همان استحکام پايه هاي مودت و دوستي ميان مسلمانان و تقويه‌ي پيوند برادري ايماني‌است؛ پيوندي که ديگر پيوندها را نا بـود، و تمام تفاوت ها و فاصله ها را محو مي‌کنـد و ايـن هـمان مصـداق ارشـاد خداونـد بزرگاسـت کـه مي‌فرمايد: «انما المومنون اخوة»(حجرات) «بي‌شك که مسلمانان برادر يکديگراند» بـه همـين جهـت آن‌حضرت صلی الله علیه وسلم در منشـور«حجـة الوداع» در برابر يکصد هزار نفر و يا بيشتر روي آن تأکيد کرده فرمودند: «همانـا ريخـتن خـون و خوردن اموال شما بر يکـديگر تـان حـرام اسـت، همچنان‌که هتک حرمت اين روز، درين شهر و ماه بر شما حرام است». (مسلم)

کما اين که در جريان حج بود که آيات برائت از کفار و مشرکين به فضا طنين اندازشـد: «وَأَذَانٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّـاسِ يَـوْمَ الْحَـجِّ الأَكْـبَرِ أَنَّ اللَّه بَرِيءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ و رسـوله )«توبـه/۱-۳) «و [ايـن آيات] اعلامی است از جانب خـدا و پيـامبرش بـر مردمان در روز حج اکبر که خـدا و پيـامبرش از مشرکان بيزارند.

پيامبر صلی الله علیه وسلم در جريـان حـج شان، بسا احکام حج را بـه منظـور مخالفـت بـا روش مشرکان تغيير دادند که الآن به خاطر ضيق مجال، نمي توانيم بدان‌ها بپردازيم و اين امـر تـا آنجا مطرح‌است که علامـه ابـن قـيم از آن چنـين نتيجه مي‌گيرد: «مخالفت بـا عملکـرد مشرکين- به‌ويژه در مناسک حج- درشريعـت الهـي امـري است مطلوب و غير قابل انکار.«

براستي، حاجي بايد اين ارمغان بـزرگ حـج را نيز فراچنـگ آورده و بـا اهـل ايمـان برمحـور عقيده دوستي و با اهل کفر دشمني ورزد و بداند که انسان فقط دو راه در پـيش دارد کـه سـومي ندارد: اسلام يـا جاهليـت؛ حـزب خـدا يـا حـزب شيطان» :أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَـنُ مِـنَ اللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ«(مائده/۵۰) «آيا جوياي حکم جاهليت هستند؟ [در حالي‌که] حکـم چـه کسي- براي گروهي که اهل يقين دارند از حکم خدا بهتر بوده مي‌تواند؟«

## پنجم: جستجوي فضل الهي (تجارت)

از ابن عباس رضـی الله عنـه مرويسـت کـه برخي ياران پيامبر صلی الله علیه وسلم اشتغال به تجارت در بازارهاي عکاظ، مجنه و ذوالمجـاز کـه در جريان مراسـم حـج بـه‌پا مي‌شـد، را برخـود گناه مي‌شمردند، لذا اين آيـت نـازل شـد :«لـيس علـيکم جنـاح ان تبتغـوا فضـلا مـن ربکـم» (بقره/۱۹۸)«بر شما گناهي نيسـت کـه جويـاي فضـل، از پرودگـار تـان شـويد(به تجـارت بپردازيد)»(بخاري).

همين بود که اصحاب پيـامبر از آن پـس در ضـمن مراسـم حـج تـا آن جـا از تجـارت سـود مي‌بردند که حضـرت عمـر در جـواب کسي- کـه پرسيد: آيا شما اصـحاب پيـامبر صـلی الله علیـه

وسلم در اثناي حج، به تجارت هم مي پرداختيد؟ فرمود: «آيا مگر نه اينست كه ايشان معيشت خود را از تجارت حج تأمين مي كردند؟.«

بي‌گمان موسم حج، فرصت مناسبي است كه گروه‌هاي مختلف اسلامي براي تحقق منافع مشترك و مصالح متقابل شان -منجمله: منافع تجاري و مصالح اقتصادي- با هم جمع شوند، بي‌آنكه اين امر به حج‌شان خللي برساند زيرا خداوند بزرگ، هر گونه حرج و مانعي را از سر راه چنين فعاليت هاي حياتي كه براي امت اسلامي قوت و خير به ارمغان مي آورد، بر داشته است.

اگر مسلمان هاي امروز بهره برداري درست اقتصادي ازين فرصت فراهم شده به خوبي مي‌دانستند و با عرضه‌ي توليدات، و امضاي قرار داد ها و توافقات تجاري و ايجاد بازاري به نام« بازار مشترک اسلامي» اين جنبه‌ي حج را احيا مي‌كردند، بي‌ترديد بسا از مشكلات اقتصادي امت حل مي‌شد.

**ششم: تقواء و پرهيزگاري:**

بدون شك، هدف از تمامي احكام و شرايع دين -به ويژه در حج كه آيات مربوط به آن، با دستور به تقوا خاتمه يافته‌است- دست‌يافتن به گوهر گرانبهاي تقواست؛ چنان‌چه في‌المثل، در باره‌ي قرباني حج، خداوند بزرگ مي فرمايد: »لَن يَنَالَ اللَّهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَاؤُهَا وَلَكِن يَنَالُهُ التَّقْوَى مِنكُمْ» (حج/۳۷) «هرگز گوشت‌ها وخون‌هاي‌شان به خدا نخواهد رسيد ولی [اين] تقوای شماست كه به او می‌رسد» و حجاج درين سفر ديني‌شان كاري جز تمرين تقوا و آرسته شدن به گوهر پرهيزگاري ندارند. اين رقابت ذاتي ميان حجاج در حصول گوهر تقوا كه در ايامي چند، باجديت انجام مي‌پذيرد، بايد به روش و سلوكي دوامدار تحول پذيرد و دستاويز حج‌گزار موفق، در برگشت به خانه اش باشد و با بيداري قلب و هوشياري عقل زندگي را از سرگيرد.

**هفتم: اخلاق نيكو:**

اگر بخواهيم حج را از منظر اخلاق معنا كنيم، به جرأت مي‌توان گفت كه حج، يك تمرين موثر و بي‌نظير اخلاقي است، چنان‌چه حجاج در ايام حج، مهم‌ترين فضايل اخلاقي، چون: مساوات و برادري، صفا و صميميت، زهد و ورع، تواضع و فروتني، آرامش و وقار، تلاش و كوشش، صبر و تحمل، اخلاص و يك‌رنگي و به ويژه صلح تا عالي‌ترين مراتب آن را -كه مي‌بايست حتي به حشرات و نباتات نيز كمترين آسيبي نرسانند- را تمرين و تجربه مي‌كنند. (دقت كنيد!)

براستي حج، از يك‌سو به دليل آن همه مشكلاتش كه زمينه را براي جولان فضايل بالا فراهم مي‌سازد و از ديگر سو به‌خاطر آن‌كه زايرينش را غرق در درياي معنويت و خداجويي مي‌سازد، مناسب‌ترين زمان و زمينه‌ايست براي




تمرين و تحصيل فضايل اخلاقي، از همين جهتاست كه خداوند بزرگ مي‌فرمايد: «فَلاَ رَفَثَ وَلاَ فُسُوقَ وَلاَ جِدَالَ فِي الْحَجِّ» (بقره/۱۹۷) «در اثناى حج گفتار و كردار شهواني و گناه و مجادله قدغن‌است». پس مي‌بايد حجاج امت ما، گوهر بزرگ اخلاق اسلامي را از مدرسه‌ي حج فراچنگ آورده و بزرگترين ارمغان شان در بازگشت از حج براي مردم‌شان باشد.

**هشتم: توبه و استقامت:**

حج، يک رويداد عظيمي در حيات مسلمان است، بسياري از مسلمان ها به ديده‌ي آغاز يک تحول شگرف در زندگي به آن نگاه مي‌كنند و زنده‌گي بعد از آن را زنده‌گيِ از نو شمرده و از سکوي آن، آينده را به ديده‌ي خير و عزم بر استقامت و ترک معصيت مي‌نگرند. و اين تعجبي ندارد، زيرا حج، يكي از بزرگترين وسايلي است كه گناهان و تقصيرات گذشته را محو و نابود مي كند، چنان‌چه ابوهريره از پيامبر صلى الله عليه وسلم روايت مي‌كند كه آن‌حضرت صلى الله عليه وسلم فرمودند: «كسي كه حج نمايد در حالي كه از گفتار و كردار شهواني پرهيز نموده و مرتكب گناهي نشود، همانند روزي كه از مادر تولد يافته (پاک از گناه) بر مي گردد» ( بخاري و مسلم)

(۱- بشارتش آشكار است كه بخشيده شدن گناهان باشد، چنان‌چه فرد نود ساله- اگر چنانچه به در ستي حج كرده باشد- همانند نوزاد يک ساله خالي از گناه و با قلبي تابان و پاكيزه بر مي گردد.

(۲- و اما اشارتش اينست كه شايسته‌است به‌كسي كه اين كرامت نصيب وي شده‌است تا آن را حفظ كند و قلب پاكش را به سياهي گناه آغشته نسازد. چنانچه حسن بصري(رح) حج مبرور را چنين تفسير كرده است: «اين كه زاهد و نجات يافته از بند دنيا و راغب و مشتاق به آخرت برگردد» و اين به حق از بزرگترين نشانه هاي قبولي حج‌است.



# شهيدي قافلې

## شهید عبیدالله (لطیف)

جرس

داخل مو دشهیدو قافلو کالم کې دیوه داسې ځوان او قهرمان شهید پیژنده ځایه کړي، چې دالله تعالی په دین مین ،دجهاد او مورچل عاشق او دکورله خوږو څخه یې دسنګر سرې ګولۍ او تکالیف تر هر چا ډیر خوښ وو،شهید عبیدالله (لطیف) چې تر کومه ماپیژنده او سلام کلام مې ورسره و،تل به دتبسم او دخندا په حال کې کتل کیده ،په خبرو کې ډیر فصیح اللسان او کله به یې چې له چا څخه کومه ناخواله واوریده، یا به یې کوم ملګرې کې نامناسب کار وکوت ،له ځنډ پرته به یې مخامخ ورته غلطي ښودله دا که به هغه څومره دده ملګری هم و،ددې برداشت یې نه درلود، چې له ډیر تحمل څخه ورسره کار واخلي او همداسې یې په تیروتنه کې ملوث پریږي ،همداسې به یې چې درسره مجلس کې په کومه موضوع څومره په جدیت خبرې وکړي ،بیرته به یې ورسره وخندل او ستا غصه او دتندې ګونځې به یې په خپله مینه ناکه خندا ختمې کړي ،لنډه داچې سپین زړی مسلمان ،مخلص مجاهداو بي بیلګې شخصیت و،خاطرات یې له هر چا سره ډیر دي، خو چې دلیکنې حوصله تنګه ده ،نودده پیژندنه په لنډو تکو کې داسې را نغاړو!!

شهید عبیدالله (لطیف)

نوم : عبیدالله (لطیف ) د محمد الله زوی دمحبوب لمسی د کنړ ولایت د وټه پورولسوالۍ دډاګ کرمول کلې کې په( ۱۳۹۳ )ش کال دزمري په ( ۱۳ )نیټه پیدا شوی او په( ۸۱۰۴۱۲۰۱۴ Aug ۰٤, ۲۰۱٤ )تاریخ دشهادت لوړې مرتبې ته رسیدلی ، دنوموړې شهید ټول عمر (۵۴) کاله وه.

ابتدایي زده کړې یې په خپل کلي کې کړې دي اوذی علاقه دیني زده کړې یې د پاکستان په صوابۍ اونورو مدرسو کې تر سره کړي دي .

۱ : په انګلیسي ژبه ښه پوهیده او تر څنګ یې خطاطي هم کړې وه .

* د روسانو په وخت یې هم د خپل مشر تره له ځوی شهید داکتر نعمت الله سره یوځای جهاد کاوه ، چې کله یې دپاکستان باجوړ ته هجرت کاوه ،د(۱۸) کالو شاوخوا به وه، . د روسانو په وخت کې د شهید رحمه الله د کورنۍ څخه هم څلور کسه شهیدان شوي دي ،چې یوه پکې دشهید خور ، دوه ترونه ( شهید رحمت الله) چې د شهید ډاکترنعمت الله پلار ، (شهید جمت الله)او د شهید رحمه الله

( نیا ) وه) دا څلور واړه د روسانو لخوا په شهادت رسیدلي وو.

شهید عبید الله داسلامي امارت دواکمنۍ په وخت کې د اسلامي امارت د مخالفینو سره د پیچ دره کې ډیر جنګونه کړي اوهم د افغانستان په شمال او بامیانو ولایتونوکې هم د جنګونوپه لومړیو لیکو کې یې مسلسل برخه اخستې، چې وروستیو کې د غازی اباد په ولسوالۍ کې دامنیي قومندان په صفت یې دنده تر سره کړي ده .

کله چې امریکایانو پر هیواد یرغل وکړ ،شهید عبیدالله او دده صف خوږ ملګرې او دتره څوی (شهید ډاکتر نعمت الله) ورسره جهاد له لومړۍ ورځې نه شروع کړ، ترڅو یي دا خوږ او نزدي ملګری ډاکتر نعمت الله ترې د امریکایانو په یوه چاپه کې په شهادت ورسید.

نوموړی شهید په متفجراتو کې تجربه کار استاد او په خپل لاس یې د امریکایانو یې شمیره ځغروال وسایط الوځولې او په بیشمیره جنګونو کې شرکت کړی دی .

له نیکه مرغه چې دخپل ټول فامیل په ملتیا یې دویم ځل هجرت زاړه دارالهجرت ته وکړ،چې دتکالیفوپه لړ کې یې (۱۹) میاشتې زندان هم داځل تیر کړ.

دشهید لطیف د حسن کارکرد ه ګۍ او جهادي منل شوي اسلوب له امله ورته داسلامي امارت لخوا ړومبۍ دلګۍ مشري او بیا د نرنګ ولسولۍ مسؤلیت ورکړ شو او نوموړی تر پایه ددې ولسوالۍ ولسوال وو .

دا چې ښاغلی عبیدالله د شهادت غوښتونکی او دهمدې لارې دکاروان په ملتیا مېین ځوان و،په ( ۲۰۱۴ )هـ ق کال کې د وروکې اختر په اوومه (۷) ورځ په خپل پلرني کلې کې د اجیرو پولیسو لخوا ورته کمین نیول شوی و، چې له څه جنګ وروسته نوموړې د ځان سره یو پولیس مړ ، بل زخمي کړ او دا هم د شهادت لوړ مقام ته ورسید، الله تعالی دې شهادت قبول کړي !

خاطره:

اسماعیل مولوي صیب د شهید لطیف رحمه الله د خولې څخه حکایت کوي، چې کله په آخري ځل باندې سنګر ته روانیده ، یوملګرې ته یې ویلې و، چې که داځل زه ژوندی راواپس شوم او شهید نه شوم، نو بیا به زه منافق یم، بیا به ماسره سترې مشي نکوئ !! همداسې وشول او دې خپل تعهد کې ربښتونی شو.

صفات :

تیز او چالاکه، خوش طبعیته ، میلمه دوسته او د سخا غوندې دمروؤت له نور جالبو صفاتو درلودونکی و .

دشهید عبیدالله څخه (۵) اولاده پاتي دي، چې یو یې ځوان تاند مجاهدپریښی او دده نه ورپاتې چارې سنبالوي او څلور یې لورګانې دي .

روح یې ښاد او خوشحاله اوسه !

ژباړه: دکتور نجیب الله صالح



دتاریخي هسپا نیا دغرناطي یو مسلمان شوي لیکوال او ادیب :

# له مسلمانیدو وروسته مې ژوند وپیژانده !

اسپانوي نومیالی ادیب اوشاعر (امیلیو پاییتیروس مازان ) دغرناطی اوسیدونکی چه دیو استاد په صفت په خپلو ادبي اوفرهنګي فعالیتونو بوخت دی داسلام تر قبلولو وروسته یې یوه ادبي مجله دنوروفرهنګي ملګروپه مرسته تاسیس کړه چی د(الحسمیة) په نوم یې و نومولـه او حسبیه په المغرب کی دهغه ښار ګوتي نوم دی چی اسپانیې سره تړلی دی، په سلګونو داستانونه، ناولونه اوشعري فعالیتونه لري چی اخیرنی ناول یې د (البرکة ) په نوم له چاپه راوتلی چه ۲۰۰۵ م کال کی تالیف اود موءلف دنویو اسلامي نظریاتو څرګندوی دی نوموړی لیکوال دالمجتمع اسلامي مجلې ته داسلام قبلولو قصه داسې بیانوي :

پوښتنه : اسلام ته دې څنګه مخه کړه اواسباب یې څه وه ؟

ځواب : تقریباً لس کاله وړاندې زمایوه شاګرده انجلۍ چې دیوې هسپانوي مسلمانې کورنۍ سره یې تړاودر لوده دهغې مور زماپه شان شاعره وه نو ددې انجلۍ په واسطه به موکله ناکله دځنې قضایاوپه هکله څه اشعار تبادله کول لکه په اسلام کی دښځې حالت، نوموړې یوه دقوی شخصیت اومنظم ژوند څښتنه وه، خوځه موده وروسته دغه کورنۍ زماڅخه بیدرکه شوه اوڅوکاله وروسته چې ماخپل یوناول خپور کړ نوزماسره یې تیلیفوني رابطه وشوه هغې له ماڅخه داسلام دقبلولو غوښتنه وکړه او دهغې خبرې په مازیات تاثیروکړ اوپه دې لټه کې شوم الحمدالله چې اوس درې کاله کیږي ماسلام قبول کړی.

پوښتنه : پدې تحول سره دې په لومړي سرکی څه احساس کړه اودکورنۍ تعامل دې څنګه وه؟

ځواب : ماپه دې تحول سره دستر روحي اطمینان احساس وکړ دژوند هدف می وپیژنده ازادي می احساس کړه په لومړي سرکې زماخپلوانو اوملګرو دغه بدلون بدشاګوم وباله ،زه لړتنهاشوم اوزما خپله کورنۍ او زامن ټول مې خبر کړل خوهغوی لا اسلام نه دی قبول کړی زمامور،پلار اوخویندو دغه خبر یونااشناقضیه وګڼله خو بیایې زمااسلام راوړل تایید کړل.

پوښتنه :دیولیکوال ادیب اوشاعرپه حیث دغه تحول په تاڅه اثر وکړ او ایا ستا په ادبي فعالیت یې څه تاثیر وکړ ؟

ځواب : هوزه همداوس په داسې يوناول ليکلو مصروف يم چې په اسپانيه کې د۱٦ م قرن حوادث تمثيلوي اوستوري (کرکټران ) يې هغه هسپانوی مسلمانان دي چې غرب ته له اريتيريا نه دخپل دين دحفاظت په خاطر راغلي دي ،تر څو هلته په زور سره عيسويان نه شي اوداهغه خلک دي ،چې له عيسويانو پټ يې هلته اسلامي ژوند کاوه. دشعرونو يوټولگه مې همداوس نشر کړې، چې دليلی اومجنون له قيصی نه الهام اخلي اويورنگ تصوف مزاجه حيا په کی پرته ده. همداراز يولړ نورې مقالې مې په هسپانوي اوبرازيلي مجلو او اخبارونوکې نشر- کړي چه د ادب اوتصوف ترمنځ تړاو په هکله ليکل شوي.

پوښتنه : ستاداخيري ناول عنوان برکت وه داپه څه معنی ؟

ځواب : دبرکت کلمه له يوه پلوه يوه ښکلې اودخير اومحبت نه ډکه کلمه ده ، چه الله تعلی خپلو بندگانو سره دهغې اظهارکوي او بل ماته ديوخاص سعادت اوخير زيری راکوي.

پوښتنه: ديو اديب په حيث اياسلام ستاپه هغه ليد کی څه تغير راوست چی دې نړۍ نه يې لرې؟
ځواب : زمادژوند هدف اومبارزه دانسان لپاره ديوی ښې نړۍ جوړول وه، ما اوسني سرمايه دار نظام ته هروخت د رد اوښک په سترگه کتلي خوبل طرف ته زه ديوې ذهني تشې سره مخ وم، کوم ښه اوغوره نظام زماپه ذهن کی نه وه، سره ددې چې زماطبيعت نيک فالی دی خوزه دبدفالۍ ښکار وم، خواوس زماپه ليدکې پوره تغير راغی، زه او س دپخواپه څېر نه بلکې يومتوازن انسان يم، ماته دژوند تکليفونه هيڅ مشکل نه شي جوړولای ،دخپل ځان اوجهان په مقابل کې زه دنيک بختۍ احساس کوم زمانظربدل شو، زه اوس پخپله غوره کړې لاره اعتماد لرم، ځکه زه په الله ايمان لرم، زه اوس ديوې غوره نړۍ جوړول غواړم چه هلته محبت مينه او ورور ولي وي.
پوښتنه : تر اسلام راوړلووروسته تا عربي ژبې ته مخه کړه، داعربي څنگه ژبه ده ؟

ځواب :عربي ډيره ښکلې ژبه ده، اوتر اوسه يې خپل اصالت ساتلی، سره له دې چې په محاوره او روزمره استعمال کې يې زيات تغير راغلی ،خوددی سره هم زماپه وطن هسپانيه کې راته دقرنونو په موده کې د دوهمې ژبې حيثيت لري، بله داچې عربي يوه ژوندۍ اوتغير قبلونکې ژبه ده، ټول الفاظ اواصوات يې قواعد لري ،دکلمې په لږ تغير سره مختلفی معنی گانی ورکوي ،حتی کله کله دکلمې په لږ تغير سره متضادې معناوې ورکوي، چی دايې په قوت دلا لت کوي.

پوښتنه : اسلام دی دکومو پوهانو اوکتابونو له نظره مطا لعه کړی؟

ځواب : ماډير څه لوستي، طبعاً قران کريم مې په هسپانوي ژبه لوستی وه، دامام غزالي کتابونه او (الحکم ) دابن عطاء الله تاليف، دشيخ عبدالقادر جيلاني رح کتابونه، دجلال الدين رومی رح اشعار ،ددې نه علاوه داسې کتابونه چې دمسلمانانو حالات اودعربي نړۍ مشکلات په گوته کوي ،دسيرة النبی کتابونه اوداسې نور مطالعه کړيدي .

پوښتنه : داچې غربي پوهانو اوس اسلام ته مخه کړی دا پدیده څنګه تعبیروئ؟

ځواب :غربي تمدن اوس دنابودی په لور مخه کړې، ددې سره چې غرب دتمدن ازادی اوعلمانیت مدعي دی، خوتر اوسه په داسی ادیانو هم عقیده لري ،چې په هغې کې له شرمه ډکو شیانو خدایان جوړ شوي اوله پو چو روحاني او خیالي نظریاتونه ډک دي، دغر ب خیالي خدایان اوس مال ،مصرف ، اوقدرت دی، اوس غربیانو ته بازار پیداکول، عاجل خوراکونه، موسسې اودفترونه دیومقدس مومن به حیثیت لري، چې او س لا دمبارزې نور نوي میدانونه دشهرت طلبی ، کار او غیر انساني تولیدات ، تکنالوجي ، پلاستیکي جراحي (طب التجمیل) چه الهی خلقت کې تغیر راولي، خلاص شوی اوخلک پری اخته دي.

غربي ځوانان دمخدارت او اخلاقی انحرافاتو په سیند لاهو او دهلاکت په لور روان دي اوهغوی اوس دخپلو جنسيـ خواهشاتود پوره کولو لپاره دشرابو اوانسان عبادت کوي، دحیوانیت په لور روان دي اوروز مره دانتحار حادثات مخ په زیاتیدودي هلته اخلاقي معیارونه نشته، یو کارګر د مریي په حیث استعماليږي اوادنی اختیار دخپل کار په مقابل کی هم نه لري.

کورنی نظام ړنګ دی اوس غربیان د تنهایۍ ژوند سره مخ دي، ژوند یې هیڅ معنی نه لري، ټول ژوند یی خپګان اوپریشاني ده، چی درقص اوشرابو په محفلونو خپل وخت تیروي، چه دغه کانسرتونه هم ددوئ لپاره یوعذاب دی، ځکه ترکانسرت وروسته بیا له تنهایۍ او یوازیتوب سره مخ دي، داچې کمونیزم دغربي سرمایه داري نظام دیوبدیل په حیث شکست وخوړ ،نو غربي پوهان اوس داسلام په حقانیت پوه شول، چې دایوداسې نظام نه د ی، چه زوړ شي او وخت یې تیر شي، لکه چې پخوایې داسې نظر درلود، سره ددې چې بعضې غربي دولتونو له کړوځخه څرګندیږي، چې ګني اسلام اوس دیوعملي نظام په حیث دتطبیق وړنه دی،خوبیاهم اسلام یواځینی هغه روحي اواجتماعي بدیل دی، چه نړۍ به د ځان وژنې له دغه څپوڅخه بچوي، چې اوس پرې اخته ده اوغربي تمدن یې ورکش کاږي.

پوښتنه : په هسپانیه کې داسلام حالت اوس څنګه ارزوئ؟

ځواب : اسلام ا وس هره ورځ مخ په وړاندې روان دی، هسپانویانو اوس اسلام ته مخه کړې اوزیات عدد خلک اوس روزمره اسلام قبلوي، همد اراز هغه مهاجر چې اصلاً مسلمانان دي، هسپانیه کې مخ په زیاتیدودي ،خومسلمانان اوس هم دلته لږ دي او زیات عدد هسپانویان اوس دوی ته دویرې او ترس په نظر ګوري او ۱۹۳۶ کال جنګونه وریادوي ،خودایې له ویرې ایستلې، چه له مسلمانانو سره په هسپانیه کی په پینځلسم، شپاړسم اواولسم قرن کی کوم وحشتونه وشول ،څومره اجتماعي وژنې سوځونې اوداسلامي اثارو تخریب اوله منځه وړنې تر سره شوي.

ابو ظهیر

# داسلام غزوات او سرایا

## دعبدالله بن انیس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ سریه

دمحرم الحرام په پنځمه او د دوشنبې په ورځ رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبرشو چې خالد بن سفیان هذلی ولحیانی درسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دجنګ لپاره لښکر غونډوي، رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عبدالله بن انیس انصاري رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ دهغه په قتلولو پسي ولیږه.

عبد الله بن انیس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ لاړ،له هغه سره یې خبرې اوکیسې شروع کړي، کله چې یې ښه پوره چانس وموند ورجګ شو قتل یې کړ، او سر یې له تنې څخه پریک کړ، او په منډه ووت لاړ په یو غار کې پټ شو،غنه راغله د غار په خوله کې یې جال خور کړ، کوم خلک چې دهغه په لټون پسې راوتي وو، هغوی چې دغار خولې ته راغلل وې لیدل دغار په خوله کې دغنو جالونه غوړولي نو بیرته ستانه شول کله چې شپه شوه عبد الله بن انیس له غار ه ووت دشپې به یې سفر کاو او دورځې به پټېدو تردې چې دمحرم په ۲۳مه نیټه مدینې منورې ته ورسید او دخالد سرې درسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخکې کیښود، رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زیات خوشال شو، او ورته یې په تحفه کې یوه امسا ورکړه بیا یې ورته و فرمایل:

تحصر بهذا فی الجنة فان المتحصرین فی الجنة قلیل.

ژباړه: دا امسا واخله اوپه جنت کې په دې سره ګرزه، ځکه په جنت کې په امسا ګرځیدونکي به شاذو نادر وي

هم یې ورته وفرمایل: دا زما او ستا ترمنځ دقیامت په ورځ نښه ده.

عبد الله بن انیس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ هغه امسا له ځان سره تول عمرساتلې وه او دمرګ په وخت کې یې وصیت وکړ چې امسا زما په کفن کې کېږدئ، کله چې وفات شو هم داسې یې وکړل( الطبقات الکبری لابن سعد ۲ټوک ۳۵ مخ زرقاني زرقاني ۲ټوک ۶۳مخ زاد المعاد۲ټوک ۷۱۰۹)

موسی بن عقبه وایي: خلک وایي :چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعبد الله بن انیس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ دراتلو څخه وړاندې دخالد بن سفیان دمرګ خبر ورکړی و.

درجیع واقعه:

دصفرې میاشت وه دعضل اوقاره په نوم قبیلې ځیني خلک درسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په

خدمت کې حاضر شول او عرض یې وکړ : زمونږ قبیلې خلکو اسلام قبول کړی دی، ته مونږ سره څو کسان ولیږه چې هغوی هلته مونږ ته دقرآن را زده کوي او داسلام حکمونه راښیي.

دا دابن سعد روایت دی،دبخاري په روایت کې دي چې دغه لس کسان رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مکه کې دقریشو دخبر معلومولو په غرض ولیږل دا تعجب وړنده چې په لومړي سر کې دهغوی دلیږلو هدف هم دا و لیکن دعضل او قاره قبیلې په راتلو یې هغوی دقرآن او اسلامي حکمونو ښودلو په غرض دهغوی سره ولیږل

رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کوم لس کسان له هغوی سره ولیږل دځینو نومونه دادي:

۱عاصم بن ثابت رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ۲ـ مرثد بن ابي مرثد رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ۳ـ عبد الله بن طارق رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ۴ـ خبیب بن عدی رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ۵ـ زید بن فردثنه رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ٦ـ خالد بن البکیر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ۷ـ معتب بن عبید رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ دعبد الله بن طارق علاتي ورور.

کله چې هغوی درجیع په نوم ځای ته ورسیدل کوم چې دمکې او عسفان ترمنځ راځي دعضل قبیلې خلکو له مسلمانانو سره غداري وکړه اوبنو لحیان قبیلې خلک یې په هغوی باندې خبر کړل، بنو لحیان دوه سوه کسان چې سل یې غشي ویشتونکي وو دمسلمانانو په تعقیب پسې روان کړل کله چې ورنیږدې شول حضرت عاصم رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ دملګرو سره یوځای یوې غونډۍ ته پورته شو،بنولحیان مسلمانانو ته وویل: تاسو راښکته شئ مونږ درته آمان درکوو.

حضرت عاصم رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وویل: دکافرانو لخوا په پناه راکولو به هیڅکله کوز نشم

او دا دعاء یې وغوښته:

اللهم اخبر عنا رسولک

اې الله خپل پیغمبر زمونږ دحال نه خبرکړي!

دا دبخاري روایت دی، د ابوداود طیالسي روایت دی: چې دحضرت عاصم دعاء الله قبوله کړه ا و هم هغه وخت دوحي له لارې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبر شو او رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه هم خبر کړل.

او هم داشان حضرت عاصم رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ دغه مهال دادعاء و غوښته:

اللهم اني اَحمِی لک الیوم دینک فا حمِ لِی لَحمِی

یا الله!نن زه ستا دین دفاع کوم ته زما دغوښې یعنې زما دبدن له کافرانو څخه وساتي.

هم هلته حضرت عاصم رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ له اوو ملګرو سره یوځای وجنګید او شهید شو، عبد الله بن طارق ، زید بن دثنه اوخبین بن عدی دریواړه دمشرکانو لخوا داماں ورکولو په ژمنه له غونډۍ ښکته شول خو مشرکانو دهغوی سره هم غداري وکړه هغوی دریواړه یې و تړل، عبد دالله بن طارق رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وویل:

دا لومړی غدر دی او نده معلومه چې نوربه څه سلوک کوي له دې وجې یې ور سره دتلو نه

انکار وکړ مشرکانو هغه هم هلته شهید کړ او حضرت خبیب بن عدی رضي الله عنه او حضرت زید رضي الله عنه یې دځانو سره مکې ته بوتلل.

هلته په مکه کې صفوان بن امیه چې پلاریې په بدر کې وژل شوی و، هغه حضرت زید دخپل پلار په عوض کې وژلو لپاره واخیسته، دحضرت خبیب رضي الله عنه په لاس په جنګ بد رکې حارث بن عامر وژل شوی و، له دې وجې حضرت خبیب دحارث ځامنو واخیست(بخاري شریف فتح الباري ۷ټوک ۲۹۲مخ)

صفوان دخپل قیدي په قتل کې تاخیر غوره ونه ګاڼه دخپل غلام نسطاس سره یوځای یې دتنعیم نه بیرون دقتلولو لپاره واستاو، او دقتل دننداري ته دقریشو یوه ډله خلک په تنعیم کې را جمع وو، چې ابوسفیان بن حرب هم پکې و

کله چې زید رضي الله عنه یې دقتلولو لپاره مخکې کړ نو ابوسفیان ورته وویلي:

زیده! زه تاته په خدای سوګند درکوم ایا ته دا خوښوي چې ته خلاص شي او ستا په بدل کې محمد صلی الله علیه وسلم قتل کړای شي او ته په ارام سره پخپل کور کې وي.

زید رضي الله عنه وویلي

په خدای سوګند ماته دا دزغم څخه بیرون ده چې درسول الله رضي الله عنه په پښه کې يو ازغی لاړشي او زه دې پخپل کور کې ناست یم.

ابوسفیان وویل:

په خدی سوګند ما په هیچا کې دومره محبت او مخلصانه دوستي نده لیدلې څنګه چې دمحمد صلی الله علیه وسلم ملګري په محمد باندې فدا او قربان دي.

بیا نسطاس حضرت زید شهید کړ، رضي الله عنه ( ابن هشام ۲ټوک ۱۲۱مخ)

هو!نسطاس وروسته په اسلام مشرف شو ی. رضي الله عنه

نوربیا ...

# د بلخ متقي امیر

لیکوال: حامد افغان

امام السرخسي رحمه الله وایې: دبلخ یوه امیر له علماو نه فتوې وغوښتله چې په قسم کې حانث شوي، څنګه کفاره پریکړي؟ هغوی ورته وویل: دری روژې ونیسه. امیر چې خپلو درباریانو ته ورغی اوکیسه یې ورته وکړه نو په ژړاشو... او ویې ویل: هغوی ماته ځکه د روژو نیولو فتوا راکړه او لسو مسکیانونه ته د دوه وخته ډوډۍ ورکولو فتوا یې رانکړه ځکه هغوی فکرکوي چې زما شتمنې ټوله حرامه ده.

دبلخ اوشاوخوا موجوده امیران به هم کله دومره دقیق سوچ کوي او دخپلو شتمنیو دومره اندیښنه به لري.

# کلیسای غرب

## و عملیهء رهبرسازی برای عالم اسلام

مولوی عبدالمهیمن حقانی

داکتر (صمویل مارینوس زویمر) یکی از بزرگترین و مشهورترین مبلغان کلیساهای امریکا برای عالم اسلام بود، او که در سال ۱۸٦۷م در (میشیگان) امریکا به دنیا آمد و در دانشگاه های مسیحی امریکا چون hope college و مدرسهء لاهوتی نیوبرونزویک علم لاهوت مسیحی را فراگرفت و به سند (دوکتورا) نائل گردید در نتیجهء کوششهای پی در پی اش از بارز ترین استادان مبلغین مسحی جهان غرب به عالم اسلام گردید، و در کار پخش مسیحیت و دشمنی با اسلام تا آنجا به پیش رفت که غرب وی را ( رسول مسیحیت به عالم اسلام) نامید. داکتر (صمویل مارینوس زویمر) ۲۷سال مسلسل در کشورهای اسلامی به دعوت به مسیحیت پرداخت و از تعلیم، خدمات صحی، نشر کتاب، اجتماعات، مناظره ها، سیمنارها، خطابه ها در مجامع علمی و دانشگاها، توظیف صدها منصر-(مبلغ مسیحی) و شیوه های دیگر تأثیر گذاری در راه پخش مسیحیت در مجتمعات اسلامی کار گرفت، و سالها را در کشورهای اسلامی چون بحرین، سعودی، مصر، فلسطین، سوریه، ترکیه، هند و کشورهای اسلامی دیگری گذراند، و راهکارها و برنامه های مفصلی را برای مبلغین نصرانی و کشورهای استعماری غرب در امر تأثیر گذاری بر مسلمانها و (جنگ عقیدوی) با آنها از خود بجا گذاشت که حرکت جهانی تنصیر امروز در جنگ با اسلام و مسلمانها از آنها استفاده میکند و به اشکال و کیفیتهای گوناگون و در مراحل مختلف برای تنفیذ و تطبیق پلان های بجا گذاشتهء وی مصروف عمل اند.

داکتر(صمویل زویمر) اشغال کشورهای اسلامی را توسط غربیها فرصت طلایی برای پخش دعوت مسیحیت در عالم اسلام میدانست، و از همینرو همگام با نیروهای غربی ده ها سال سعی کرد تا مسلمانان را از اسلام منصرف و به مسیحیت آشکار دعوت کند، ولی او در نتیجهء تجربه هایش با مسلمانان دریافت که مسلمانان حقیقی هیچگاه دعوت صریح وی را که گراییدن به دین مسیحیت است نمی پذیرند و تنها چند تن از آن مسلمان نما ها از وی

پیروی کرده اند که مسلمان حقیقی نبودند. او به ناکامی خود درین عرصه چنین اعتراف می کند: ((وقتهای زیادی را در دعوت مسلمانان صرف کردیم، و مصاریف هنگفت مالی را متحمل شدیم، و تا جای که در توان ما بود کتاب نیز نوشتیم، و خطابه ها ایراد نمودیم، و لکن با وجود این همه مساعی نتوانستیم مسلمانان را از اسلام به مسیحیت بکشانیم، جز آنهایکه دین جدید خود (نصرانیت)را بر اساس هوسرانی هاقبول نمودهاند. کاری را که ما انجام میدهیم شباهتی به مسخره دارد بجای اینکه کار جدّی ای باشد.((

بعد از آنکه منصرین غربی از نصرانی شدن مسلمانها نا امید گردیدند طریقۀ دعوت خود را عوض گردند، و بجای اینکه در سعی (نصرانی سازی) آنها گردند بر این اکتفا کردند که مسلمان را (نا مسلمان (سازند گرچه نصرانی نه شود. پس همان بود که کلیسا های غرب در کشورهای اسلامی مکاتب، دارلایتام ها، دانشگاه ها و ادارات تعلیمی دیگری را بنامهای گوناگون گشودند وفرزندان مسلمانها را درآن جذب کرده وبر روحیۀ غربگرایی وسیکولریزم تربیه نمودند.

نصاب های را که این ادارات تعلیمی در کشورهای اسلامی تدریس می نمودند گرچه تعلیمات صریح (نصرانیت) را در اکثر جاها در بر نداشت اما در عین وقت آن نصابها از روحیه و تعلیمات و ارزشهای فکری و معنوی و اخلاقی اسلامی نیز بی بهره بود، و اذهان شاگردان را بر روحیۀ (لیبرالیزم) و (مادی گرایی) عیار می ساخت، و زندگی و ارزشهای مجتمات غربی به آنها بطور الگوی قابل تقلید تلقین میکرد.

در نتیجۀ کوششهای کشیشهای مبلغ و مشاوران تعلیمی غرب نسلی از فرزندان مسلمانها در کشورهای اسلامی بوجود آمد که تنها نامها و نسبتهای شان اسلامی بود، ولی فراتر ازین در همۀ ابعاد زندگی سیاسی، اجتماعی، فکری، اخلاقی و معیارهای مادی و معنوی برای زندگی غربگرا بودند، و زندگی و نظامهای سیاسی را در کشورهای شان طوری عیار ساختند که شریعت اسلامی در آن وجود نداشته باشد.

صموپل مارینوس زویمر ازین شیوۀ جدید تأثیر گذاری مبلغان غربی و تأثیرشان بر مجتمعات اسلامی در یکی از کنفرانسهای تنصیری چنین یاد آوری میکند: ((ای مبلغ مسیحی! وقتیکه مسلمانی را در رابطه به اسلام متردد و مذبذب سازی، و به اسلام صدمه بزنی، موفق و پیروز میباشی .همین تذبذب او اگر چه مسیحی نشود کافی است)). و همچنین افزود: ((وظیفۀ تنصیر که دولتهای مسیحی شما را بهدف اجرای آن به کشورهای محمدی فرستاده این نیست که مسلمانان را حتما نصرانی سازید، بلکه وظیفه و مکلفیت شما اینست که مسلمان را (نا مسلمان) سازید؛ زیرا نصرانی گردانید او برای وی هدایت و اعزاز است. وظیفه شما اینست که او را مخلوقی بگردانید که رابطۀ با الله نداشته باشد، و از همۀ آن اخلاق و ارزشها محروم گردد که ملتها در زنده گی خود بر آن

اعتماد می کند، و شما به انجام این کارتان پیش آهنگان فتح استعماری در کشور های اسلامی می گردید. این کار را شما به بهترین شکل اش در صد سال گذشته انجام داده اید، من و دنیای مسیحی به سبب این دست آورد شما به شما تبریک میگویم. درین مقطع تاریخ ما بر تمامی برنامه های تعلیم در جهان اسلام تسلط یافتیم.((

تنصیری ها از چندین طریق بر جریان های تعلیمی در کشور های اسلامی تسلط پیداکردند، آنها هم از طریق ادارۀ )یونیسکو) وزارتهای تعلیم و تربیه را در کشورهای مسلمان به این وادار کردند که نصاب های تعلیمی خود را از تأثیرات دینی اسلام تخلیه کنند، وهم درین کشورها در کنار مکاتب و ادارات تعلیمی حکومتی ادارت تعلیمی ای دیگری از خود افتتا ح کردند.

از جملۀ ادارات تعلیمی ای که کلیساهای امریکا بهدف تقدیم تحصیلات عالی و رهبرسازی برای مسلمانها تأسیس نموده اند یکی هم سلسلۀ دانشگاه های امریکایی است که در لبنان، مصر، ترکیه، نایجیریا، و کشورهای دیگر اسلامی اند. این دانشگاه ها از طرف (مجمع کلیساهای پروتستانت) امریکا تأسیس تمویل و اداره میشوند. کادرها و رهبرانی را که این دانشگاه ها در کشور های اسلامی بوجود آورده است آنها نه تنها اینکه کشورهای عالم اسلام را طبق فرمایشات و قوانین غربی اداره میکنند بلکه در همۀ این کشورها از حاکمیت شریعت اسلامی به تمام معنی جلوگیری نیز کرده اند .

دشمنی ای را این پروردگان نصابهای غربی و شاگران مبلغین کلیسای غرب با حاکمیت اسلام و ارزشهای معنوی و اخلاقی اسلام دارند شدیدتر از دشمنی خود غربیها است.

دیروز اگر مبلغان نصرانی کلیسای غرب بطور افراد و گروپهای کوچکی در عالم اسلام مصروف دشمنی با اسلام بودند ولی امروز در نتیجۀ تغییر شیوۀ تأثیر گذاری از (تنصیر) به ( تعلیم ) بر روحیۀ لیبرالیزم و (دین ستیزی) بطور حکومتهای مسلط بر کشورها و مجتمعات اسلامی به پیمانۀ وسیعی توسط فارغان همین ادارات تعلیمی و دانشگاه ها مصروف جنگ اند.

دیروز کشورهای صلیبی غرب در زیر بیرق صلیب نیروهای خود را وارد صحنۀ نبرد با اسلام و مسلمان ها میکردند که غربیها خود نیز در آن جنگها صدمه میدیدند و متحمل زخم و مرگ میشدند، اما امروز آنها در ادارات تعلیمی و در نتیجۀ نصابهای تحمیلی بر عالم اسلام رهبران و مسؤولینی را تربیه کرده و بر عالم اسلام مسلط نموده اند که میلیونها فرزند مسلمانان را برای تحقق بخشیدن به آرمانهای کلیسای غرب که دشمنی با اسلام و جلوگیری از حاکمیت شریعت است وارد میدان نبرد نموده اند که بجای غربیها خود در مقابل مجاهدین بجنگند.

رهبرانیکه در نتیجۀ تعلیم (غربی گونه ( پیروان غرب گشته اند همۀ شان بلا استثناء حکومتها و نیروهای جنگی کشورهای اسلامی را در جنگ با اسلام قرار داده اند، و امروز همۀ

ارتشهای کشورهای جهان اسلام بجای اینکه در دفاع از دین و سرزمین مسلمانها باشند با تمام قساوت و شدت در جنگ با ملتهای خود مصروف اند، و بمب و بارود و اسلحهٔ را که ازمالیات و دارایی های ملتهای مسلمان میخرند آتش اش را دوباره برسرهمین ملتها میریزانند.

مستشرق فرانسوی (لویس ماسنیون) که مشاور وزارت خارجه فرانسه، متخصص زبان عربی و و امورجهان اسلام، و یکی از مبلغان پرکار در مصر بود همواره به کشورهای اروپایی و امریکا برین تأکید میکرد که باید این کشورها ذکاوتمندترین فرزندان جهان اسلام را برای آموزش در ادارات تعلیمی و دانشگاه های خود بپذیرند، تا آنها در کنار علم از فکر، عقیده، فرهنگ، سلوک و صبغهٔ زنده گی غربیها نیز رنگ بگیرند، و بعد از فراغت در کشورهای شان به مناصب و مسؤولیتهای علیای برسند. و وقتیکه آنها زمام امور کشورهای خود را بدست آرند با تمام رغبت و قناعت قلبی در مستعمره ساختن سرزمینهای اسلامی دست با مستعمرین غربی یکی میکنند و در تسخیر ملتهای مسلمان با غربیها یکجا کار می کنند.

لویس ماسینیون همیشه به مسؤولین کلیسا ها و زمام بدستان امور تعلیم و تربیه در اروپا توصیه میکرد که از فرزندان مسلمان ها مشتاقانه استقبال کنند و فرصتهای را ایجاد کنند که جوانان مسلمان در اروپا از (تمدن مسیحی) رنگ بگیرند.

لویس ماسینیون بر شاگرد و فادارش (میشل عفلق) که بعدها مؤسس حزب بعث عربی در عراق و شام و یکی از فیلسوفان نشنلست عرب گردید بسیار می بالید، و در رابطه به شخصیت وی می گفت: که (میشل عفلق (از نابغه ترین و گران مایه ترین شاگردان من است.

ادارات تعلیمی ای را که مسیحیها در کشورهای اسلامی ایجاد کرده اند در محیط های تعلیمی و شیوه های پرورش بر تشویق جوانان به رفتن به غرب و به تلقین به اینکه غربیهای مسیحی دشمنان مسلمانان نیستند تأکید میکنند. در کنار دو هدف یاد شده محصلین خود را بر روحیهٔ آزادی غربیگونه که در حقیقت آزادی از دین و ارزشهای اخلاقی مسلمانان است، و به نظریهٔ آزادی زنان به شیوهٔ غربی و به تبلیغ برنامهٔ تحدید نسل و تقویهٔ نظریهٔ نشنلیزم و به مسخره گرفتن علمای دین عیار میسازند.

خطرناکترین مؤسسهٔ تعلیمی ای را که کلیسا بهدف ایجاد نسل جدید از رهبران غربگرا برای عالم اسلام تأسیس نموده همانا ) دانشگاه امریکایی بیروت) در لبنان است. این دانشگاه که تقریبا یک ونیم قرن قبل در بیروت توسط کشیشهای امریکایی تأسیس شد، نسلی از رهبران و مدیران را تربیه نمود که بغیر از جنگ و فعالیتهای نظامی کشورهای عربی را برای غربیها تسخیر نمود، و شریعت اسلامی را از زنده گی سیاسی و اجتماعی و اقتصادی ملتهای آن سرزمینها برداشت.

خطرنـاکترین دو شخصـیت افغـان کـه عبارت از )زلمی خلیلزاد) و (اشرف غنی احمدزی) اند نیـز شـاگردان منصرـین امریکـایی در همـان دانشگاه امریکایی بیروت استند.

خـدماتی را کـه ایـن دو شخصـیت دسـت نشانده اسـتادان کلیسـایی دانشـگاه بیـروت بـه امریکا انجام داده ثمرۀ تلـخ آن خـدمات را ملـت افغانستان برای چندین دهۀ دیگر خواهد چشید.

زلمـی خلیلـزاد و اشرف غنـی احمـدزی کـه همسر اولی (یهـودی)، و همسرـ دومـی (نصرـانی) اسـت هـر دو از جملـۀ مغزهـای نهایـت فعـال و اشخاص نهایت و فادار وارزنده برای امریکا انـد، و از جهت همـین اهمیـت در مناصـب علیـای ادارات پلانگـذار وسیاسـت سـاز امریکـا قـرار گرفته اند.

زلمـی خلیلـزاد فـارغ التحصـل دانشـگاه امریکایی بیروت بحیث پژوهشگر و خبیر امـور افغانستان و جهان عرب ابتدا در وزارت خارجه و سپس با (کاندولیزارایس) در ادارۀ امنیت ملـی و بعـد از آن بطـور طـراح موافقنانامـۀ (بـن) بـرای اشـغال افغانسـتان، و بعـد از اشـغال افغانسـتان توسط امریکا بطور سفیر امریکا در کابل و سپس بطور سفیر امریکا در عراق و اخیرا بطـور سـفیر امریکا در سازمان ملل متحد برای امریکا خـدمت نموده است.

و اشرف غنی نیز که فارغ التحصیل همین دانشـگاه امریکـایی اسـت بطـور پروفیسرـ در دانشگاه های امریکا و مأمور بانک جهانی و خبیر امـور افغانسـتان و منطقـه بـرای رسـانه هـای انگلیسـی و امریکـایی و همچنـین بطـور مـامور عالیرتبۀ ملل متحد در کنفرانس (بن) برای اشغال افغانستان، و بعد از آن به حیث رئـیس دانشـگاه کابل و سـپس بحیـث وزیـر مالیـه در حکومـت دست نشـاندۀ امریکـا بـرای افغانسـتان خـدمت نموده که در پاداش همین خدمات مخلصـانه اش از طرف (جان کیری) وزیر امـور خارجـۀ امریکـا بحیث رئیس جمهور افغانستان تعیین گردید.

زلمـی خلیلـزاد نـه تنهـا اینکـه خـدمات سیاسی، استخباراتی و اداری را به نظـام امریکـا تقدیم نموده بلکه با اشتراک با همسر یهـودی اش (چیریـل بنـارد) کـه مـدیر یـک بخـش مؤسسـۀ تحقیقـاتی (رندکارپوریشـن) اسـت یـک طـرح خطرناکی را بهـدف تحریـف اصـل اسـلام بنـام Civil Democratic Islamنیـز بـه امریکـا تقـدیم نموده کـه هـدفش جـاگزین سـاختن یـک اسـلام (ساخت امریکا) بجای )اسلام حقیقی) در زنـدگی مسلمانان در عالم اسلام است.

اگر زلمی خلیلزاد با همسر یهودی اش طـرح تحریف اسلام را ریختـه، اشرف غنـی بـا همسرـ نصرـانی اش (رولا) عمـلا بـرای تطبیـق و پخـش همـان اسـلام امریکـایی از طریـق حکومـت، مؤسسات غربی و نهادهای سـیکولر بنـام جامعـۀ مدنی دست به کار شده اند.

کلیسـای غـرب و حکومـت امریکـا وقتـی نتائـج دلخواهش را از فعالیتهای تعلیمی در کشور های جهان اسلام مشاهده نمود تشـویق شـدند تـا

بعد از اشغال افغانستان علی الفور دانشگاه امریکایی را در پایتخت افغانستان کابل نیز بنا نهادند، تا ماشین رهبر سازی خود در افغانستان و منطقه نیز فعال نمایند، و این در وضعیتی بود که افغانستان هنوز در آتش جنگ میسوخت، و آن استقراری هم بوجود نیامده بود که برای پیشبرد همچو پروژه های بزرگی ضروری پنداشته میشود.

دانشگاه امریکایی کابل که زیر سرپرستی زلمی خلیلزاد سفیر امریکا در افغانستان بوجود آمد هدف و رسالت خود را که رهبر سازی برای افغانستان و منطقه است در معرفی نامهٔ خود چنین اعلام داشت)) :دانشگاه امریکایی افغانستان به ارائهٔ آموزشهای عالی به سطح جهانی به هدف ایجاد رهبران برای پاسخگویی به نیازهای افغانستان و منطقه آماده شده است، این رهبران قادر خواهند بود که به تفکر انتقادی با چالشهای جهان به سرعت در تغیر مقابله کنند، و دستیابی به قیادت در مجالهای تجارت، تعلیم و تربیه، خدمات اجتماعی، حکومت، قانون، روابط بین المللی و سکتور های دیگری حاصل نمایند.((

ووقتیکه این دانشگاه امریکایی مراسم فراغت اولین دسته از فارغانش را در سال ۱۳۹۰هـ ش دائر نمود، سفیر امریکا در آن زمان جنرال (کارل آیکنبیری) در ضمن سخنرانی اش در آن مراسم در رابطه به اهداف ورسالت دانشگاه کلیسایی امریکایی چنین وضاحت داد: (( این دانشگاه برنامه دارد تا در آینده نسلی را در افغانستان تربیه نماید که قیادت امور اقتصاد و تجارت، تکنالوژی معلوماتی، قانون و حکومت داری در آیندهٔ افغانستان و منطقه بدست شان باشد.((

در دو اعتراف صریح فوق ثابت گردید که)دانشگاه امریکایی کابل) و سفیر ایالات متحده هدف از فعالیت های تعلیمی خود را (رهبرسازی) برای فردای افغانستان و بدست گرفتن زمام امور حکومتداری و قیادت در افغانستان و منطقه است.

امروز در تمام عالم اسلام زمام قیادت و رهبری نظامی بدست آنهای سپرده شده است که یا فارغان مکاتب و دانشگاه های غربی اند، ویا هم پروردگان نصابهای تعلیمی ای اند که غربیها و پیروان شان آن را در کشور ها اسلامی تطبیق نموده اند.

بعضی از خطرناکترین کارهای را که پیروان غرب وپیام گیران کلیسا در کشورهای اسلامی انجام داده اند از قرار ذیل اند:

.۱دور ساختن شریعت اسلامی از زندگی سیاسی، اجتماعی، اقتصادی افراد و مجتمعات در کشور های اسلامی.

.۲جاگزین نمودن قوانین وضعی بجای شریعت اسلامی.

.۳پخش و تطبیق (سیکولریزم) در مجتمعات اسلامی.

.٤وابسته ساختن کشورهای اسلامی به کشورها و نظامهای غربی در سیاستهای داخلی وخارجی، اقتصاد و ابعاد دیگر زندگی.

.٥پخش و نشر نظریهٔ غربگرایی میان ملتهای مسلمانان در کشورهای شان.

.٦ایتلافها با کشورهای استعماری غرب در جنگ بر ضد جهاد و مجاهدین در تمام جهان.

.٧براه انداختن جنگ فکری و فرهنگی از طریق فرهنگ، تعلیم، و رسانه های همه گانی بر ضد عقائد، احکام و تصورات اسلامی، و در تنگنا و فشار نگهداشتن دعوتگران اسلام.

صدمهٔ را که سیکولرها و غربگراها به شریعت و فرهنگ اسلام و همچنین به مجتمعات اسلام رسانیده اند اندازه اش به مراتب بالاتر از ضرری است که کلیسا در چندین قرن گذشته رسانیده بود. چون در نتیجه دعوت کلیسا شاید از هرچند صد میلیون یکتن به نصرانیت می گرایید و در دشمنی با اسلام قرار میگرفت، ولی امروز دنیای غرب و کلیسا از سیکولریزم، دیموکراسی، حقوق بشر به تعبیر غربی اش، حرکت آزادی زنان، غربی سازی، و آزادی از هر قید و بند دینی و اخلاقی برای (نامسلمان) ساختن مسلمانها بطور وسائل کارگرفته اند امروز می بینیم که در نتیجهٔ کوششهای جدید نظامهای غرب و کلیسا صدها میلیون مسلمان وبه میلیونها تن از نیروی های عسکری و امنیتی و استخباراتی و اداری مسلمانها در کنار دشمن قرار دارند، و در صف دشمن با اسلام ومجاهدین در جنگ استند، وبه هزار ها تن شان در راه تحقق آرمانهای دیرینهٔ کلیسا و نظامهای غرب جان میدهند ومتحمل خسارات مالی وجانی میشوند.

اینکه چگونه جلو این فتنهٔ عظیم را بگیریم، و ایمان و اخلاق و هویت اسلامی میلیونها فرزند اسلام را از (ایمان ربایان (کلیسا و یغما گران غرب چگونه حفاظت نماییم ضرورت به اندیشیدن به این حقائق و درک همه جانبهٔ از وضعیت اسفبار امت اسلامی دارد. و تا وقتیکه امت اسلام و سرزمینهای اسلامی را از تسلط این قیادتهای خود باخته و بیگانه نواز نه رهانیده باشیم شاید شاهد اوضاع بدتری از اوضاع امروز باشیم.

چون الله تعالی تغییری را در وضعیت هیچ قومی به سوی نجات و بهبودی نمی آورد تا آن که افراد آن قوم خود در تلاش فلاح و بهبودی خود نگردند.



ليکوال: باعث قطب

# د ديموکراسۍ په ظلمت کې د اساسي

# او اسلامي قانون توپير

دا

لـه انصـاف،

منطـــق او لـــه

حقيقته ډېره لـرې خـبره ده

کـه مـونږ کـوم کـوچنی او جـزئي انسـاني قانون له الهـي قـانون سره پرتلـه کـړو او ادعـا وکـړو چـې د ديموکراسۍ او يـا هـر انسـاني قـانون او تشريع پلانکۍ مـاده د اسلام لـه مربوطه قانون سره معادله ده او هاغه بلـه يـې هم کوم تضاد ورسره نه لري!...

دا افواهـات او توجيهات د هغـو جُهـالو بې نهاده او بې بنسټه ادعـاوې دي چـې د اسلام د معارف او روح څخـه نـاخبره دي او يا هغـه مغرضـين او مـادي مطـالبين دي چـې د يهودو او صليب او يـا هـم د نړيـوال جاهليت په مادي غبرګ کې يې ځانونه اچولي دي او يا هم د غـرب تجدد خواهـه روبوټـان دي، چـې غرب په خپله فکري جګړه او استعمار کې را ښکېل کړي دي او د فرهنګ او تاريخ لـه بُعد څخـه هـېڅ عـزت او فخـر پـه خپـل تـاريخ او خپل وقار نـه لـري بلکـې غـرب د خپـل مـادي خط او خال پـه ښودلو سره پـه خپلـه سيطره کې نيولي چې د فکر له نګـاه هـېڅ آزادي نـه لري او يوازې تاريخي غلامان دي....

انسـاني او الهـي قـانون او وضـع سره لـه دې چې کوم مشابهت او ورتـه والـی نـه لـري؛ بلکـې پـه يـو بـې نهايتـه واټـن او فاصلې سره قرار لري او هېڅ کله به سره نزديکت او تقرب ونکـړي، دا هرڅـــه هغـــه وخـــت ظـــاهر او معلوميږي ،چې د دې دواړو قوانينو ثمرات او عملي پلښت مطالعه کړی شي او کـوم نتـايج چې په ټولنه کې له ځانـه سره لـري، هغـه بـه سره په نه قياسېدونکي واټن سره قرار ولري.

دا توپیرونه مونږ په پنځو دلایلو سره وړاندې کولی شو چې په لاندې ډول دي:

لومړی: کوم قوانین او احکام چې د علیم او خبیر ذات له خوا وضع شوي وي ،په پوره توګه متوازن، تول او سنجول شوي دي او د هغه خدای له خوا مقرر شوي چې د انسان او ټولې ښکاره او ناښکاره هستۍ مالک او متصرف دی او د دې هستۍ له ماضي او مستقبل څخه آګاه دی او په پوره توازن او معیار سره د بشرـ لپاره وضع شوي دي او په دې سره د انسان د قاصر عقل له وضعې سره په کلي توګه توپیر لري او هېڅ کله یې د انسان له قانون سره ــ که څومره ظاهري مشابهت هم ولري ــ نه شو پرتله کولی او په عملي تطبیق کې به زښت ډېر توپیر ولري.

د انسان طبیعت دا نه دی چې د الله ج دخالقیت کارونه چې یو یې د قوانینو وضع ده، په غاړه واخلي او بشر ته قوانین وټاکي، که له خپل طبیعت سره په تضاد عمل وکړي نو خامخا به په اشتباه کې لویږي!

او نه هم د انسان دا قاصر او کمزوری عقل د الله ج له بشپړ علم او پوهې سره د پرتلې وړ دی، نو د دې دوه بشپړ توپیر لرونکو ذاتونو (مالک خدای او انسان) په وضع او حکم کې به اړین توپیر شته وي، اګر که ظاهراً کوم ورته والی ولري.

دویم: د قانون د وضع «هدف» دی ،چې په دې سره الهي او انساني قوانین کلاً توپیر لري، الهي قوانین د انسان د دارینو د بریا او سعادت لپاره د بنده په لاس د رب د رضا د طلب په پار پلي کیږي او هېڅ نوع مادي او شخصي ګټې په نظر کې نه نیول کیږي او یوازې د آخرت د خیر د جزا لپاره د اسلامي دولت له خوا پلي کیږي او هدف یې د انساني قانون له هدف سره کلاً توپیر لري او قابل د مقایسې نه دي .

د انساني قانون په وضع کې یوازې د یو ټولي، ګوند، حزب او یا ملت او وطن مادي ګټې په نظر کې نیول کیږي او دا هدف د انسان له ارزښت او د الهي تشرېع له هر اړخیز هدف سره بیخي په نشت حساب دی.

که د الهي تشرېع له تطبیق او پلښت څخه هغه بې شمېره مادي او دنیوي ګټې هم په لاس راځي؛ نو دا به د الله ج لورینه او نعمت وي او په هدف پورې به اړه نه لري، په داسې حال کې چې د الله تعالی قانون د بشر له طبیعت او خلقت سره پوره سازګار دی او په تطبیق سره به یې انسان د کونینو (دنیا او آخرت) سعید وي.

دریم: که چېرې د هغه دولت چې بنسټ يې انسان وي؛ کوم وضعي قانون له اسلامي فقهې څخه هم واخيستل شي، نو بيابه هم په اسلامي قانون کې نه شمېرل کيږي، ځکه د اسلام ټول تشريعات او احکام سره تړلي دي او قابل د انقسام نه دي او که په دې ډول د اسلام يو قانون پلی شي او نور په خپل حال پرېښودل شي، نو هغه ګټه چې بايد يو قانون يې د انسان لپاره راوړي؛ له ځانه سره ونه لري

نو په دې سره که د ديموکراسۍ په سيوري کې د اساسي قانون لپاره اسلامي فقهې ته رجوع وشي او په خپله خوښه ترې احکام را جدول کړی شي، نو بيا هم د اسلامي احکامو ځنځير شليږي او په دې سره بيا هم دا اخراج شوي قوانين اسلامي نه شو ګڼلی.

څلورم: د تطبيق روش او تلنلانه ده، چې د الهي او انساني قوانينو په توپير کې لوی دخالت لري.

د اسلام ټول تشريعات چې د الله له طرفه پر بشر وضع شوي دي ،هرومرو بايد د نورو اسلامي قوانينو په رڼا کې تر سره شي او سبک د تطبيق يې بايد پوره او بشپړ اسلامي وي او له هرڅه اړينه دا چې بايد د اسلامي



دولت په شتون کې د اسلامي دولت له خوا تر سره او د قانون او حکم د اجرا ټول قوانين په نظر کې ونيول شي او په خپل ځای او مکان سره اجرا کيږي او د نورو قوانينو په شتون کې له افراط او تفريط څخه ډډه کيږي.

اما انساني قوانين اکثراً په مستقيم ډول سره پلي کيږي او لکه اسلامي قوانين؛ هېڅ قانون له يو بل سره په مطلوب او متوازنه توګه کوم ارتباط نه لري.

پنځم: هغه «حالت» او شرايط چې د اسلامي قانون د وضعې لپاره بيان شوي دي؛ هېڅ د انساني قانون د وضعې لپاره په نظر کې نه نيول کيږي چې دا شرايط هم د اسلامي احکامو تړون را ښيي چې انساني قوانين له دې مزايا څخه خالي دي...

حسن زوی

# د رحلت دردونه

# درحمت ترسیورو لاندې

دالله تعالی په مخلوقاتو کې دانسانانو په شمول یو ژوندی هم په نړۍ کې تل پاتې کېدونکی ندی؛ یوه ورځ هریوته مرگ راتلونکی دی ؛ اوچې په تقدیر دهرمسلمان ایمان دی نو داد هرمسلمان عقیده ده چې هر انسان ته د خدای د حکم سره سم په ټاکلی وخت او ځای کې مرگ راځي ؛الله تعالی اعلان کړیدی چې نړۍ د فنا دار دی پرمخ یې شته ټول څیزونه فنا کېدونکي دي؛ یواځې دالله تعالی ذات باقي پاتی کېدونکی.

دنیاد بقا ځای ندی نوځکه پکې نه څوک تل پاتې شوی او نه به پاتې شي ؛ که دلویوالي له امله دلته څوک دهمېش لپاره پاتې کېدای نو انبیاءعلیهم السلام چې دالله تعالی ترټولومقرب اومحبوب بندگان وو هغوئ به دلته دتل لپاره پاتې شوي وای خوهغوئ هم دلته دتل لپاره باقي پاتې نه شول اوټولو دفنا له دې دارنه دبقادار ته رحلت وکړ.

نوچې انبیاء دلته تل پاتې نه شول یوانسان هم دلته دتل لپاره باقي نه شي پاتې کېدای ؛ امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی هم دهمدغوانسانانو نه یو انسان و؛ په نړۍ کې چې ورته دالله تعالی له لورې څومره عمرلیکل شوی و هغه یې پوره کړ اودلیکلي عمر دپوره کېدوسره سم ورته دتقدیر د خدایي قانون له مخې په ټاکلي وخت او ځای کې مرگ راغلو .

درب په ټولوپرېکړورضا دمسلمانانو مسئولیت دی دا هم زموږ د رب پرېکړه ده نوموږ ته په سر سترگو قبوله ده او وربانـدې رضا خپل شرعي مسئولیت گڼو.

خودخدای پر حکم درضا اودطبعي غم اودردترمنځ چې هیڅ تضاد نشته نودامیرالمؤمنین په فراق چې د هېواد او نړۍ ټول ژمن او باشعوره مسلمانان سخت غمجن دي ، زړونه یې سخت دردېدلي دي او له سترگو یې اوښکې روانې دي دا یې هغه طبعي حق دی چې خدای ورکړیدی؛ نو نه یواځې دا چې پردې غم اودرد مو الله تعالی نه ملامتوي بلکې دا د انسانانو ترمنځ د خپلمنځي ترحم او همدردۍ نښه گڼي نو ورته مقبول دی اورحم هم په همداسې رحم کونکو کوي.

هو! هرمسلمان دبل مسلمان په مړينې اوفراق خفه کېږي خودټولو مسلمانانودفراق غم يوشان نه وي ؛ که دچاسره نسبي قرابت نه وي اويا هغه لوی شخصيت نه وي نوغم يې سپک وي خوکه نسبي نږدې قرابت وي اويا شخصيت ستروي نوبيا يې غم هم ښه ستراودروند وي بياد شخصيتونوترمنځ هم فرق وي ؛پر چا څو افراد ژاړي؛ پر چا کلي ژاړي پر چا ولسونه او پر چا عالمونه ژاړي. اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی چې يواځنی هغه مشرو چې د نړۍ د مسلمانانو په زړونو کې يې ځای لرلو او پراسلامي هېوادونودمسلطوحاکمانونه دخپلو ولسونودناهيلۍ پدې سترعالم کې يواځې همده ته دنړۍ دمسلمانانو دامېد سترګې وراوړېدلې نو ځکه وايوچې نه يواځې دافغانستان مجاهد ولس بلکې ټوله اسلامي نړۍ غمجنه ده اوټوله پرې ژاړي .

د اميرالمؤمنين چې کوم مقام او منزلت و شايد ګڼ متعصبين به ترې لاهم انکار کوي خو تاريخ به دالوړمقام اولويه مرتبه هيڅکله هم پټه نکړي او زماني پس به ښه په روښانوټکو دده رحمه الله دلويوالي اولوړوالي خبره ترقيامته راتلونکو نسلونوته ثبت کړي .

**که په چا کې انصاف وي نوبايد داومني چې اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی چې دکوم حرکت بنسټ کېښود اوترآخره يې چې دکوم حرکت قيادت اومشري وکړه دې قيادت دډېرې سترې ناهيلۍ په حالت کې ولس اومسلمان ملت ته هغه بې ساري لوی خدمت وکړچې چابه يې تصورهم نه شوکولای.**

تاسې وګورۍ! د روسانو د تجاوز له امله او په مقابل کې يې په شوي جهاد کې چې يو نيم مليون افغانان شهيدان شول، او د افغانانو همدې جهاد او پکې د سترو قربانيو په نتيجه کې چې روسانو ماتې وخوړه نو افغانانو او د نړۍ د ټولو مسلمانانو د هيلو سره سم چې دلته د عدل او امن نه ډ ک سوچه اسلامي نظام نافذېدونکی و د قدرت په سر د څو حريصو ځېرو د خپلمنځي جنګ له امله نه يواځې دا چې دې نظام تحقق و نه موندلو بلکې پر دې غريب ولس د شر او فساد نه ډک يو داسې دور راغلو چې حکومتي نظم بيخي له منځه ولاړ؛ پرهېواد طوائف الملوکي مسلطه شوه؛ هر زورور به د خپلې قبضې لاندې سيمې باچا و؛ د هرو دوه ښارونو تر منځ به دسرکونوپه سرد غلو او لوټمارانو په سونو پاټکونه وو؛ افغان ولس د صحت او تعليم په شمول دژوند د ټولو اسانتياو نه بې برخې و او د هيچاځان ، مال او عزت نه وخوندي.

دا حالت به د هرې ورځې په تېريدلو له بد نه بدتر کېدلو؛ هغه نړۍ چې افغانانو د روسانو د ستر شر نه ژغورلې وه پکې هيڅوک داسې نه و چې پدې حالت کې يې افغانانو ته لاس ورکړی وای او يايې

ددې بد حالت نه د دوئ د راویستلو لپاره کوچنی اقدام یا فکر کړی وای.

له هر لورې ناهیلي وه او دې غریب ولس هیڅوک داسی نه لیدلو چې دامېد سترګې یې وراړولی وای اونه یې یو فیصد دا تمه لرله چې ګینې د دې ستر ناورین نه به یوه ورځ راووځي اویابه پدې هېوادکې دولتي نظم اونظام بیاوجود وومي.

د نا هیلی په همدې ستر عالم کې د ستر فراست څښتن؛ د هېواد او ملت لوی غمخور، رښتیني مدبر، د همت غر او د جرأت، حریت او دقربانی سمبول ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د خپلو څو ملګرو سره یوځای ددې ستر شر او فساد پر ضد په یوکلي کې قیام وکړاو چې دې کوچنی ډلې ته الله تعالی په لږې مودې کې په قندهارکې ستره کامیابي ور په برخه کړه نو د افغانستان ټول حق پالونکي علماء او د دیني مدرسو طالبان ورسره یو ځای شول ؛ د طالبانو تحریک ترې جوړ شو چې ټول مجاهد ملت یې ترشا ودرېدلو اوددوئ د سترو قربانیوو په نتیجه کې دې ملت ته داسی د امن او سوکالی نه ډک نظام ور په برخه شو چې په ټول عمر کې به افغانانو د خپل سر،مال او عزت د خوندیتوب داسې احساس نه وکړی لکه پدې نظام کې یې چې وکړ، د اسعارو د تبادلې په بازارنو کې به صرافانو په خپلو پنډونو پنډونو پیسو څادرونه راخپاره کړل اوپه کامل اطمینان او ورته د نقصان رسېدلو له وېرې پرته به ترې خپلولمونځونو اونوروضرورتونوته تلل اوله طورخم نه به دپیسو ډک موټرډرېور روان کړی و اوپه خیال وخاطرکې به یې هم نه راتله چې ګینې څوک به یې پیسوته دضرر رسولو اراده وکړي.

داسمه ده چې موږ له بل هر ولس نه زیات او ستر اتلان لرو او د هر یو اتلولي په خپل ذات کې ډېره ستره ده خو که د انصاف په نظر وکتل شي نو د ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی دا اتلولي به زموږ په تاریخ کې بې ساري وي.

په افغانستان کې چې دا نظام ټولې کفري نړۍ اوخصوصا امریکا ته دمنلو وړنه و نوددې نظام ، اسلام او مسلمانانو دله منځه وړلو په موخه د امریکا په مشرۍ کې لوی صلیبي اتحاد رامنځته شو ؛ دادانساني تاریخ هغه ترټولوستراتحادو چې د نړۍ بل یوطاقت یې هم مقابلې ته د راوتلو جرأت نه شوکولای او ټول ورته تسلیم وو ؛ ددې اتحاد مقابلې ته راوتل خو ډېره لرې خبره وه هغه څوک چې اوس بریتونه تاووي ددې اتحاد دنوم په اورېدوبه یې لینګي رپېدل خو ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله ددې ستر اتحاد په مقابل کې د استقامت د غر په څېر میدان کې ودرید او د شرمونکې ماتې سره ددې اتحاد د مخامخ کولو پورې یې ددې پیل شوي جهاد قیادت وکړ چې دا یقینا د نړۍ په سطحه بی ساري اتلولي ده .

ځه پوره باورلرم چې تاریخ به دا یوه اتلولي هم هېره نکړي؛ پدې اړه به سم قضاوت وکړي ؛ تاریخ به هغه رحمه الله د صلاح الدین ایوبي په څېرداسلام دسترواو نامتو اتلانو څخه وګڼي نو ځکه وایو چې وفات یې داسې ستره حادثه ده چې باید ټول عالم پرې وژاړي او خصوصاًموږ خو له سترګو داوښکو پر ځای وینې توی کړو .

نو دامیرالمؤمنین دوفات غم ډېر سترطبعي غم دی خو دخوښۍ ځای دا دی چې ددې طبعي ستر غم سره د اطمینان نه ډک او د معنوي خوښۍ ډېرې لويې خبرې اواسباب هم شته نو دا غم يې پر ټولو مسلمانانو سپک کړی ؛ دمعنوي خوښۍ اواطمینان ددې اسبابونه یې دڅویادونه په لاندې ډول کوم .

امیرالمؤمنین رحمه الله تعالی له نړۍ سترګې پټې کړې خو د صلیبي اتحاد له لورې د هېواد د اشغال نه وړاندې او د اشغال نه پس یې دښمن ته دیوې کوچنۍ ګټې لپاره هم سرټیټ نکړاو نه یې په خپل عمر کومه داسې کوچنۍ خبره یا حرکت وکړ چې د افغانانو پرتاریخ تورټکی شي بلکې هره خبره او هره کړنه یې تاریخ جوړونکې وه نوهغه رحمه الله له نړۍ سترګې پټې کړې خو یوه خبره اویوه کړنه یې هم داسې نشته چې څوک ووایې ارمان چې دایې نه وای کړی !

کفري نړۍ خو کفري ده پراسلامي نړۍ مسلط کابوټول حاکمان چې تاریخ شرمونکي دي نوپه داسې حال کې دټولو مسلمانانو لپاره دامیرالمؤمنین داتاریخ جوړونکی شخصیت دېردافتخار وړ دی .

دامیرالمؤمنین رحمه الله په اړه ددښمن ناکامي هم دمجاهد ولس او ټول مسلمان ملت لپاره دډېر ستراطمینان خبره ده .

**هو ! هغه چې د هېواد نه د یوې ورځې لپاره هم بېرون ونه وتلو خو بیا یې هم داخلي او خارجي دښمن سره له ټولو کوښښونو په ژوندي نیولو یا وژلو ونه توانېد دا د ټولو مسلمانانو لپاره د ډېرې خوښۍ خبره ده ، که دښمن د مسلمانانو دا امیر ژوندی نیولی وای دا به دښمن د ځان لپاره څومره ستره فتحه ګڼلای او مسلمانان به پرې څومره له حده زیات زوریدای؟! او که په وژلو یې دښمن توانېدلی وای نو اوس به یې څومره د خوښۍ جشنونه لمانځلای ؟!**

پورته یادې شوې ټولې خبرې داطمینان اوخوښۍ نه ډکې خبرې دي خوتر ټولو زیاته د اطمینان او خوښۍ وړ خبره دا ده چې دنوي مشرډټاکلوپه سرچې داحتمالي اختلاف دراپورته کېدلوکومه وېره وه الله تعالی یې کلي مخنیوي وکړ؛ که د مسلمانانو تاریخ وپلټل شي نو وینو چې په داسې وختونو کې چې یوامیرقتل یاوفات شوی د واک پر سر مسلمانان د داسې اختلافاتو ښکار شویدي چې خبره لوی قتل وقتال ته رسېدلی ده خو

دلته چې د اسلامي امارت دمشرانو او کشرانو د مبارکې مبارزې او هڅو هدف واک ته رسېدل نه بلکې د دین ،ملت اودمسلمانانودعزت نه دفاع اودصلیبي اشغال نه د هېواد ازادي او د سوچه اسلامي نظام حاکمیت دی نو په فعالو اولویومشرانو کې یوهم نه دمشرۍ غوښتنه وکړه اونه یې هم داهل الحل والعقد دشورى دپرېکړې سره خپل مخالفت ښکاره کړبلکې ټولو مشرانو د ملااختر محمد منصور په نوم په هماغه شخصیت اعتماد وکړ او خپل امیر یې وټاکلو کوم باندې چې امیرالمؤمنین رحمه الله اعتماد کړی و او په ژوند یې خپل نائب جوړ کړی و.

امیرالمؤمنین چې د ډېر لوی فراست څښتن و په خپلو ټولو ملګرو کې یې چې ملا اختر محمد منصور د خپل نیابت لپاره منتخبولو نو ترټولو زیات اهلیت اوصلاحت یې پکې لیدلو او وربانديې یې ترټولوزیات اعتماددرلودلو؛ د امارت داهل الحل والعقد شورى هم دهمدې زیات اهلیت اوصلاحیت درلودلو په اساس نوموړی خپل نوی امیر جوړ کړ چې سمدستي ورسره دامارت لویو او وړوټولو مسئولینو ،عامومجاهدینو، دهېوادجیدو علماءکرامو او دهېود عامو مخلصو مسلمانانو بیعتونه پیل کړل اوښه په دیني جزبې اوکامیابۍ الحمدلله دالړۍ روانه ده.

مکاردښمن ددرز اچولو ډېرې هڅې کوي اودنړۍ مسلمانانوته دتشویش وراچولو او دولس دبې اعتماده کولو په موخه دخپلو غلامو رسنیو له لارې پدې اړه ډېر زیات پوچ تبلیغات کوي او وايي چې دنوي امیر دټاکلوپرسرطالبان داختلافاتو ښکاردي ؛ دلته هیڅ اختلافات نشته ؛ په لوړه اوتیټه کچه داسلامي امارت ټولو مسئولینو دنوي امیرسره بیعت کړی دی ؛ دخوښۍ ځای دادی چې کوم څلور پنځه نومونه چې دنارضایت په عنوان په رسنیو کې یادېږي هغوئ هم پرنوي امیر دبې اعتمادۍ اظهارندی کړی اونه یې داختلاف بیرغ پورته کړیدی ؛ که دکوم یو نیم غږ په مخالفت کې پورته شوی هم وي دهغه مخالفت ته اختلاف نه بلکې خلاف ویل کېږي چې ان شاءالله تعالى ډېر ژربه داخلاف هم الله تعالى له منځه یوسي اوددښمن دټولو هڅوناکامي به الله تعالى ټولې نړۍ ته ښکاره کړي .

ولس او ټول مسلمان ملت دې مطمئن وي چې زموږ نوی امیر به هم د ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالى په نقش قدم روان وي، دبهرني اشغال نه دهېواد اوملت ترآزادۍ اودلته دسوچه اسلامي نظام ترقائمېدلو به جهاد جاري ساتي هیڅکله به هم د خپل اصلي موقف نه تېر نه شي؛ نه به د عالي اهدافو په سر دچا سره سودا وکړي؛ نه به ددښمن اشغال ومني؛ نه به خپل مسیر پرېږدي اونه به هم دښمن ته سرټیټ کړي ان شاء الله تعالى.

# د ثالث عمر په یاد کې

ضیاء حقمل

مرحـوم امیرالمـومنین مـلا محمـدعمر مجاهـد (رحمت الله علیه) چې د ځینـو مخلیصـو مسلمانانو لـه خـوا د عمــربن خطاب(رضــی الله عنــه) او عمــربن عبدالعزیز(رحمت الله علیه) څخه وروسته د مسلمانانو د یو ستر ، زړه سواندي او مخلص مشر۔ په حیث د عمر ثالث یا دریم عمر په لقب هـم نومول شوی وو، خپل ټول عمر یې د اسلام د مبارک دین تـه پـه خدمت کې تیر کړ.

امیرالمـومنین مـلا محمدعمرمجاهـد(رحمت الله علیـه) د اسـلامي نـړۍ د تـاریخ د پـاڼو د یـوه داسـې څیرې حیثیت وګاټه چې هیڅ چا هم دا یقین نه درلوده چې د شلمې پیـړۍ د پای او د یـو وشتمې د پیـل پـه کلونـو کـې بـه مسـلمانان یـو داسـې مخلـص، متقـي، مجاهد، صابر، مدبر، صادق او امـین امیـر ولـري، چې خپل ټول ژوند به دقران او سنت پـه طریقـه تیـروي، د اصحابو کرامو د دور یوه ژوندی نمونـه بـه وي، د خپـل فولا دي عزم په برکت به د نـړۍ د دوه سـتر زبرځواکـو قـدرتونو پـه وړانـدې ودریـږي، دمسـلمانانو کفـري دښمنان او داخلي منافقینوته به غاښ ماتونکی ځواب ورکوي، په نړۍ کـې پـه مختلفـو برخـو او ټوټـو ویشـل شوي مسلمانان به د وحدت په صف کې را ټولوي، لـه پیړیو پیړیو انتظار وروسته به پـه عملي ډول اسـلامی نظام حـاکموي، شریعت بـه پلـی کـوي او د هـر قسـم مشکلاتو سره له خپل شرعی موقف څخه بـه یـو اینـچ هم نه شاته کیږي.

کـه د هغـی ژونـد تـه پـه دقیقـه توګـه سره نظـر وشي، نو هغـی د نـړۍ ددې زمـانې د ټولـو امیرانـوسره متفـاوت ژونـد درلـوده هغـی هـیڅ کلـه هـم پـه راحـت، ارامی، خوندونو، مزو او چرچو کې یـو سـاعت هـم تیـر ندی تیرکړی، بلکه خپـل ټـول ژونـد یـې د اسلام د یـو داسې غازي په توګه تیر کړی دی چې تقریبا دنړۍ په سطحه لـه ټولـو کفـري او طـاغوتي نظـامونو او اسلام دښمنه عناصرو سره یې مقابله کړی، او پـدې لاره کـې یې د بې شمیرو تکالیفو برسیره څو وارې زخمونـه هـم لیدلي دي.

امیرالمومنین د خپـل انسـاني طاقت مطابق ټـول هغه کارونه وکړل چې د یو رښتیني امیرالمـومنین څخـه یې هیله کیږي اوټولـو مسـلمانانو تـه یـې د تشې وینـا پرځای د عملـي مبـارزې، قربـانی او سرشـندنې درس وښود.

هغی د نړۍ په سطحه په ټولو مسلمانانو کې یې دویښتابه یوه روحیه پیداکړه او خپل شاته یې پـه سرو

وينو ګټل شوی يو داسې اسلامی امارت پريښود چې ټول مجاهدين يې د وحدت مثالي نمونې دي، په هره برخه کې منظم تشکلات لري، خپل شرعي هدف په کلکه تعقيبوي، دخپلوټولو اميرانو پوره پوره اطاعت کوي .

دا د الهی نظام دستور دی چې هر څوک پرته له هغه تل پاتې ذات څخه فنا کيدونکي دي، نو د يو حرکت محرک يا بنسټګر هم هيڅ تل نه وي ژوندی بلکه د بنسټ ډ بره کيدي او نور خلک بيا د غه کار مخته بيايي نو اميرالمومنين هم پوره کاروان پريښی دی، چې ان شاالله ترقيامته پورې به دا سلسله جاري وي.

زه پدې لنډې مقالې کې د اميرالمومنين په ژوند او خدماتو نه غږيږم، ځکه چې په يوې مقالې کې داکار ناممکن اونا مناسب دی پدې باندې پوره پوره کتابونه ليکل غواړي ،خو دا مي د مقدمې په ډول خبره ذکر کړه پدې مقاله کې مي د خپل يو ملګري يو دوه هغه خاطرې په نظر کې نيولي دي چې ماله ده نه اوريدلي دغه ملګری د طالبانو د تحريک د پيل په وختونو کې له اميرالمومنين سره څه موده نږدې پاتی شوی وو.

ملګری وايي کله چې د تحريک ابتدايي ورځې وې او طالبانو قندهار او څنګ لوري ځيني نورولا يتونه ونيول نومونږ د لغمان او غربي نورستان ځيني ملګري د مرحوم مولوي رستم نورستاني(رحمت الله عليه)په مشرۍ تحريک سره د يو ځای کيدو په خا طر د قندهار په لوري و خوځيدو کله چې قندهار ته ورسيدو او مشرانو سره مو ملاقاتونه وکړل مونږ د تحريک له مشرانو څخه وغوښتل چې مونږ تشکل ته وليږي، نو هغوی راسره هم ومنله او زمونږ تشکيل د فراه ولايت ته وشو.

کله چې مونږ په فراه کې وو، نو د اسماعيل خان له خوانه ډيره درنه حمله وشوه چې، ګڼ شمير طالبان چې اکثريت يې د مدارسو نه راغلي تنکي زلميان وو او جنګي تجربه يې بيخي نه درلوده شهيدان شول او ګڼ نور ټپيان شول دا لومړی ځل وو، چې د تحريک د پيل نه وروسته دومره ګڼ تعداد کې طالبان شهيدان او زخميان شول، په ټولو ملګرو باندې د غم او خفګان څادر خور وو.

مونږ د خپلو زخمي ملګرو د تداوۍ په خاطر له هغوی سره قندهار ته راغلو او د قندهار د ولايت په مقام کې ميشته شو، اميرالمومنين ملامحمدعمر مجاهد(رحمت الله عليه) هم د ولايت په مقام کې زمونږ اطاق ته مخامخ اوسيده، چې تر هغه وخته پورې د اميرالمومنين په حيث نه وو ټاکل شوی ،نو ټولو ملګرو به ورته ملا صاحب ويل.

يوه ورځ زمونږ يو ملګري چې د لغمان ولايت د عليشنګ ولسوالۍ اوسيدونکی وو خپلو ملګرو ته وويل چې راځی له ملا صاحب سره ګورو او د هغو مشکلاتونه يې خبروو چې په مونږ تير شوي دي او زمونږ پوښتنه اوس څوک نه کوي، په لومړی سر کې ما ورسره مخالفت وکړ، مګر د ملګري د ډير ټينګار له امله مجبور شو او ورغلو.

کله چې د ملا صاحب اطاق ته ننوتو هغه د خپلو څو ملګرو سره هلته موجود وو، زموږ په ننوتو سره ټول پاڅيدل او له روغبړ وروسته له ناستي سره سم مو ورته خپل ځانونه معرفي کړل، بيا دعليشنګ ملګري

ورته ټول جریان تیر کړ، ملا صاحب یې خبرې په غور سره اوریدې، کله چې ملګري د شهیدانو او زخمیانو کیسې وکړې، نو ملاصاحب ډیر وژل د ملا صاحب په ژړا سره ملګری وارخطا او پښېمانه شول، کله چې ملګري خبرې بس کړې، نو ملا صاحب وویل (ما خو دا تمه نه درلوده ،چې د مدرسې له طالبانو او عالمانو سره به داسی کار کیږي او بیا دهغه چا له خوانه چې ځانو نو ته مجاهدین هم وایي).

بیا ملا صاحب له څه خبرو وروسته خپل یو ملګری ته وویل چې دوی بازارته بوځه جامې او همدارنګه نورهرڅه چې ورته پکاروو واخله او بیا بله ورځ ملا صاحب خپله زمونږ د مریضانو پوښتنې لپاره روغتون ته هم را غی.

څو ورځې وروسته یوه ورځ د غرمې محال وو ،چې له ډوډۍ خوړلو وروسته مونږ ناست وو نا څاپه ملا صاحب د خپلو دوه تنو ملګرو په ملتیا پخپل جیپ موټرکې د ولایت مقام ته ننوت او نیغ د خپل اطاق په لوري لاړ.

دملا صا حب یوه ملګري په اشپز غږ وکړ، چې دوی ته دي ډوډۍ یو سي د علشنګ ملګري بیا وویل مونږ او ملا صاحب خو په یوه دفتر کې د یوه اشپز له لاسه ډوډۍ خورو اشپز مونږ ته خو لېږو(بامیا) راوړل، راځئ وګورو اوامتحان وکړو، چې ملا صاحب هم زمونږ غوندې لېږو خوري او که مونږ ته لېږو را کوي او خپله چرګې او پلاونه وهي.

بعضو ملګرو وویل چې بدګماني ښه شئ ندی، شکونه مه کوئ! خو ملګري د خپل عادت له مخې ډیر زیات ټنګ شو، نو مونږ یې هم مجبوره کړو چې ورشو.

مونږ څو تنه ملګري راغلو او د ملا صاحب د کوټې مخې ته تیر شو، سلام مو پرې وا چاوه او هغوی هم ځواب راکړ، د هغوی دستار خوان او وربانډې پراته خوراکونه مونږ ته له ورایه ښکاریدل، وموليدل چې ټول هغه خوراکونه ورته پراته وو،چې مونږ خوړلي وو، یوازې شړومبې پکې زیاتې وې او هغه هم ملا صا حب ته چا رالیږلې وې، ځکه هلته د شړومبو هیڅ انتظام نه وو موجود.

کله چې ملګرو دغه صحنه ولیده، نو زمونږ اعتماد د ملا صاحب په صداقت او اخلاص باندې ډیر زیات قوي شو، او پدې مو زړه متیقین شو چې رښتونی مشر دی.

دا د تحریک ابتدایي ورځې وې، چې خلکو د ملا صاحب او د هغی د ملګرو په اړه ډیرمعلومات نه درلودل او کله چې د ملا صاحب د صداقت خبرې ټو لو خلکو واوریدلې بیا خو هیڅ قسم امتحان ته اړتیا نه وه.

دا د خپلو ملګرو هغه لنډې خاطرې وې، چې درته وړاندې مي کړې، ستر او ښونکی ذات دې په هغی خپل ټول نعمتونه او رحمتونه ولوروي، او مونږ ته دي د هغوی په نقش اوقدم استقامت نصیب کړي، آمین.

